


## د ګوډاګي اداري

د عسکرو زیاتیدونکي مرګ ژوبله.....


لسم کال لسمه، پرلپسې ۹۸یمه ګڼه،

محرم الحرام۱۴۳۸هق، اکتوبر۲۰۱۶م







افغانستان کې د امریکایي جنرالانو څرګنده ناکامي!!

دوستم په شرمونو وشرمېد!

جنرال دوستم؛ بازیچه دست وحدت ملی!

دنوي قائد ترقیادت لاندې سترفتوحات او...

طالبان دوستم را به زانو درآوردند!

د مظلوم ښېرا وهلی !!



د ابوذر(الغفاري) رضی الله عنه وفات

د اختلاف شرعي ضوابط او آداب

دقرآن کریم روغتیایي اعجاز!!

## سلطان عبد الحمید الثاني

یا دعثماني خلافت څلانده ستوري!

## د بابوس اتل شهید

مولوي امرالله رهبر ژوند لیک ته لنډه کتنه!



# مورچل

لسم کال لسمه، پرلپسي۹۸ یـمه ګڼه، محرم۱۴۳۷هق اکتوبر ۲۰۱۶م

**علمي، سیاسي او جهادي میاشتینۍ خپرونه**

## لړلیک




**د امتیاز خاوند**

د افغانستان اسلامي امارت
د فرهنګي چارو کمیسیون

**مسؤل مدیر**

شکــور (شفق)

**کتــنپلاوی**

حـــسن خپـل
حـــسن زوی
زبیر مــسافـر
ایـــوب صـــافي
حکمت بغلاني
حافـظ سعــید

**تخنیکي چارې**

دفرهنګي کمیسیون تخنیکي څانګه

**مکاتباتي ادرس**

پته: کابل ښار، پنځمه حوزه، دمجلې دفتر
E-mail: baakhtaraf@yahoo.com







## دګوډاګۍاداري دعسکرو زیاتیدونکې مرګ ژوبله،

## د کابل د چارواکیو د ناکامۍ او کمزورۍ بل ثبوت !!

له اوږدې چوپتیا څخه وروسته بالاخره اشغالګرو امریکایانوومنله ، چې روان (۲۰۱٦ز)کال داسلامي امارت دمجاهدینو سره په جګړوکې دکابل دغلامې ادارې دعسکرو مرګ ژوبله له تیرکال څخه ۹٪ نهه سلنه زیاته شوې ، د افغانستان د بیارغونې په برخه کې د امریکا پلټونکې ډلې "سیګار" پخپل تازه رپوټ کې ویلي،چې د تېر کال په پرتله سږ کال د( ۵۵۲۳ )سرتېرو په وژل کېدو، د افغان عسکرو د مرګ ژوبلې کچه ۹ سلنه ډېره شوې ده .

د سیګار مشر- د امریکا مشرانو جرګې ته د خپل درېیم دريْ میاشتني راپور په اړه لیکلي،چې د روان( ۲۰۱٦ )کال له پیله د تېرې اګست میاشتې تر (۱۹ )نیټې پورې د افغانستان جګړه کې( ۵۵۲۳ )کسه افغان سرتېري وژل شوي او( ۹٦٦۵ )نور ټپیان شوي ،دسیګار راپور کې راغلي چې : سږ کال تر سپتمبر میاشتې پورې د ګوډاګیو عسکرو پر سمبالښت، پیاوړتیا او روزنې( ۵۹،۸ )میلیارده ډالر (۴۰،۲ میلیارد ډالر پر پوځ او ۱۹،٦ میلیارده نور پر پولیسو) لګولي دي دنړیوالو رسنیو دراپورونو له مخې .یوه اوونۍ وړاندې په افغانستان کې د امریکایي عسکرو او ناټو عمومي قومندان (جنرال جان نیکلسن) خبرداری ورکړ ،چې د افغان عسکرو مشرتابه کې "ناکامي او کمزورتیا" د وسله والو عسکرو د مرګ ژوبلې ډېرېدو لامل ګرځېدلی .جنرال جان نیکولسن وایي :د تلفاتو یو بنسټیز لامل د چارواکو ناسم مدیریت ته راجع کیږي، دغه ستونزه په لومړي قدم کې په پولیسو او بیا په ملي اردو کې زیاته ده)

یوې خواته جګړه کې دمقابل لورې دتلفاتوشمیر زرګونوته رسیږي، خو بلې خوا ته داسلامي امارت دمجاهدینودتلفاتوشیمر ددې سربیره چې فدایي بریدونه هم کوي ،پخپله ځان پورې باروت تړي او ټانکونو اوزرغروالو وسایطوسره ځانونه جنګوي اواستشهادي حمله کوي، خو بیا یې هم شمیرهیڅکله له سلګونوڅخه هم ندی لوړ شوی ،چې دا په څرګنده ددې خبرې توکیداوتوثیق کوي ،چې دغلامې ادارې

دعسکرو مورال لویدلی ،دقوماندې دګډوډۍ ښکاردي،دجنګ ځواک یې له لاسه ورکړی اونور به یې د(بروکسل او واشنګټن )دکوربه وو بې خرته ډالراوپرمختللې وسلې دماتې مخه نه شي نیولای! .

لکه چې پخپله امریکایي جنرالانو هم ومنله، چې دکابل دمزدورې اداري ناسم مدیریت!! دمشرتابه ناکامي او ضعف !! دعسکرو دبې کچې مړینې اوتلفاتولامل دی ......او څومره چې دحالاتونه برداشت کوو نوددې امکان ورځ تربلې ډیریږي ، چې پایله کې به دکابل دګډوله اداري پاتې غلام عسکرمتلاشي اوموجوده تشکیلات به یې چورلټ منحل شي، پداسې ظروفوکې ولي امریکایان پداسې بې شعوره تش په نامه پوځ او پولیسو دومره لوړلګښتونه کوي ؟ ولي یې ورسره دهیواد برخلیک تړلی او ولي یې په یوه ښه بدیل غور نه کوي !

،پداسې حال کې چې داسلامي امارت مجاهدین نه میاشتیني معاش ، نه کوم ډول مادي امتیازات اونه پرمختللې وسلې لري ،یوازې دمعنویانولپاره فداکاری او دسرونو نذرانې وړاندې کوي ،موخه یې په ګران هیوادکې داسلامي شریعت نفاذ،دهیواد خپلواکي اودنیواکګرو شړل دي، چې دداشاني مقدسو اهدافو له امله یې دافغان مسلمان ولس باورخپل کړی اودخپل صف ذات البیني وحدت او پیاوړتیایې تضمین کړي ده ، دې ډول ارزښتونوته په کتومعقوله داده ،چې امریکایان او لویدیځوال دکابل داوسنی اداري او مورال بایللیوعسکرو پرځای په داسې لارو چارو فکر وکړي اوداسې یوه معقوله طرحه جوړه کړي، چې هم افغان مجاهد ولس ته دمنلو وړ وي او هم ددوئ دابرومانداانه وتلو تضمین ورکړي ،غربیان چې له یوې نیمې لسیزې جګړې وروسته یې دمجاهدینو په وړاندې کومه بارزه لاسته راوړنه نده لرلې، ددې نه پس هم داسې ځرک نه لګي ،چې ددوئ سوبه باوري کړي اودوئ ته دبري کوم ډول چانس ورکړي ،دکتونکیوله نظره امریکایانوته سودمنه داده ،چې څومره ژر کیدای شي، ددې هیواده دې پښې سپکې کړي او افغان ولس دې پریږدي، چې دخپل برخلیک په باب له سره فکر وکړي .

زمونږ باور دادی ،چې وروستی فتحه به انشاء الله تعالی چې دمجاهدینو وي اواشغالګربهرنیان که هرڅومره زمونږ هیواد کې نورهم اشغال ته ادامه ورکړي ،بالاخره به دشرمیدلې ماتې او رسوایي سره مخ کیږي اودخپلو غلامو افغان نماعسکرو غوندې به یې تلفات له زرګونوو اوړي ،په تیرو پنځلسویرغلیزوکلنو کې چې نیواکګرو دکابل د چاراکیو واکمني مصؤن نه کړای شوه، ددې نه وروسته داسې کومې ښې نښانې نه لیدل کیږي، چې دوئ دې هدف ته ورسیږي او په خپلو ګوتو رغول شوي اداره دې دتل لپاره په واک کې وساتي ، بلکې دهرې ورځې په تیریدو به یې دسراو مال زیان ډیریږي اودمجاهدینو په وړاندې به سلامي کیږي !

(هڅاند)

# افغانستان کې

## د امريکايي جنرالانو څرګنده ناکامي !!

لــه هغــې نــه وروســته چــې دامريکاپــه مشرۍ لويديځوالودافغانستان پراسلامي حريم نابېره تيرى وکړاوددې هيواد اسلامي هويت او ملي خپلواکي يې وننګوله ،دتيرو پنځلسو کلونو په امتداد کې يې پوځي ځواک اوبه ،اواوس يې د(۲۰۰۱ز)کال په شان نړيوال برم اوهغه دبدبه نده پاتي ،داسلامي امارت مجاهدينو اوافغان مسلمان ولس ورته دسر په کاسه کې اوبه ورکړي اوپه خپلو فدايي ګوزارونو يې ددې ښکيلاک دغرور ځلې پر ځمکه رانسکور اودتل لپاره يې داسلامي امت ايلو هيواد ونوته دخپلواکۍ روحيه وروبخښله .

امريکايي پوځي جنرالانو هيواد کې دمجاهدينوخلاف له هر ډول تکتيک او دسيسې نه کار واخيست او هره تجربه يې تکرار کړه ،خو دحالاتوله جايزې نه چې څومره معلوميږي ،ټول پلانونه يې يو پر بل پسې ناکام شول او د( نيوزويک مجلې) په وينا چې دې وروستيو کې يې د افغانستان په اړه په مقاله کې ليکي :چې پر امريکا د سپټمبر د ۱۱مې تر حملې پنځلس کاله وروسته، افغانستان لا هم پر څلور لارې ولاړ دی.

د مجلې په ليکنه، د امريکا د څه باندې سل ميليادرو ډالرو له لګېدو سره په افغانستان کې پرمختګونه کمزوری دی او دا هېواد لا هم له سياسي، اقتصادي او امنيتي پلوه لازم ثبات نه لري.

مجله ليکي : افغانستان کې له څو کلونو پوځي ماموريت او د زياتو عسکرو له قرباني کېدو سره هم طالبانو ريښې پراخې کړي، حملې کوي، زيات افغانان بې ځايه شوي او بهرنيو هېوادونو ته تښتي.

د نيوزويک په ليکنه، داسې اندېښنې شته ،چې ښايي د ناټو په مشرۍ د غوڅ ملاتړ ماموريت ۱۵ زره عسکر د دې هېواد د امنيت لپاره کافي نه وي.....

د(نيوزويک) لدې تجزيې څخه چې څومره حقايق په نظر راځي ،هغه دادي : چې دامريکايانو ماموريت اواستعماري عزايم هيواد کې دمجاهدينو په وړاندې بشپړ ناکام دي اوداشغالګرودپنځلس کلن اشغال نه وروسته يبا هم ددوئ جنرالان

پدې ندي توانیدلي ،چې پرافغان مسلمان ولس بری ترلاسه کړي .

همداسې د(فارن پالیسي- ) په نوم یوې بلې مشهورې مجلې هم دامریکایي جنرالانودناکامی نه پرده پورته کړي او ددوئ رهبري ،اداري او محاربوي تخنیک یې له سراسري ماتي سره مواجه بللی ، فارن پالیسي په خپله وروستی ګڼه کې تر دې سرلیک لاندې چې امریکایي جنرالان په افغانستان کې ناکام شوي، مقاله خپره کړې ده.

د مقالې په یوه برخه کې راغلي، د امریکا پوځ په افغانستان کې له تکتیکي اړخه نه بلکې په پوځي اداره او رهبری کې د کمزوریو له امله ناکام شوی دی.

د فارن پالیسي په حواله، کله چې امریکایي جنرال (ډیوېډ پېټرویس) د مجاهدینو پر ضد د مبارزې خپلې مشهورې کړنلارې وړاندې کړې، داسې انګېرل کېده، چې د امریکا پوځ په افغانستان او عراق کې د جګړې له شدید وضعیت سره ځان عیار کړی دی.

خو ډېر لنډ وخت وروسته څرګنده شوه، چې دا کړنلارې تر ډېره حده خیالي خبرې او ډېرې سرسري طرح شوې وې.

خپرونې له طالبانو سره جګړه کې د کابل اداري د اړتیاوو په اړه د امریکا د دفاع وزارت د یوه چارواکي په حواله لیکلي :چې هغوئ هوایي ملاتړ ته اړتیا لري، خو فارن پالسي- پوښتنه کوي ،چې که طالبان له هوایي ځواکه پرته پرمختګ کولای شي، نو دکابل عسکر ولې پرمخ نه شي تلای؟

د فارن پالیسي دلیکنې له مخې دا ښایي لومړی پوښتنه وي، چې ځواب غواړي ،ځکه امریکایي چارواکي تل په افغانستان کې د زیاتو عسکرو، تجهیزاتو او وخت غوښتنه کوي.

د خپرونې په حواله، دا غوښتنې د افغانستان د جګړې لپاره اساسي ځواب نه دی ،ځکه دا وضعیت ښایی اوږده موده پرځای پاتې شي او بحران دوام پیدا کړي...........

اوس چې ددې وخت رارسیدلی ،چې نور باید ځمکنې حقایق له نړیوالو نه پټ نشي، نو ځکه دادی دغرب مشهورو مجلو هم پرې قلمونه راپیټ کړل او خپل پوځي جنرالان یې دناکامی تر مورګو ورسول ،داددې لپاره چې نور دلویدیځ رون آندې او ژورنالستان نه غواړي ،چې دتاریخ په وړاندې دتل لپاره دافغانستان دیرغل واقعیتونه له نړیوالو پټ وساتي او دخپل عادت له مخې هره ورځ

دخپلو یرغلګرو پوځیانواو جنرالانو دسوبې نغاري ووهي .

اوس چې امریکایان دماتي په ساحل ولاړ دي او دخپل یرغل وروستی لحظې شمارې نو دادی ددوئ دماتي اسباب مو په لنډ ډول تحریر کړي دي .

هیواد کې دامریکایانو دناکامی ډیر وجوهات کیدلای شي ،خوځویې په لاندې ډول یادوو:

۱-پر یوه مشروع او داسې اسلامي حکومت(دافغانستان اسلامي امارت) یرغل ،چې هغې دخپلو عقایدو اوملي روایاتوپه رڼا کې دافغان ولس حمایت او تایید له ځان سره لاره .

۲-یوه داسې اداره یې له منځه یوړه، چې هغې دهیوادتجزیې مخه نیولې وه اودهیواد استقلال ته ژمن وو،نو طبعي ده، چې داسې یو یرغل پر ولسي- ارادو یرغل وي او دیوه ولس مقابله آخر کې دناکامیغمازي کوي .

۳-یرغلګرو افغانستان ته داسلامي عقیدې پرځای دعیسویت عقیده ،داسلامي نظام پر ځای دیموکراسي اوپه مجموع کې دیوې مردودې نظریې سره برید وکړ،چې له امله یې دنظریو جګړه ونښته اونظریې په ټکرکې واقع شوي .

۴-دافغاني تهذیب پر ځای غربي تهذیب او دافغاني روایاتوپر ځای لویدیځ روایات دودل، پداسې حال کې چې دا قام (۵۰۰۰)کلن تاریخي قدامت لري او په هیڅ شان به خپلو ملي دودونوڅخه نه تیریږي، خو بیا هم په تحمیلي ډول اجنبي رسومات را واردول ددوئ دناکامی سبب شول .

۵-دطالبانو دحکومت په بدل کې پر افغان ولس یوه داسې اداره تحمیلول، چې ټوله دغلو،قاتلانو،وطن پلورونکیواوله بې دینه عناصرو نه ډکه وه ،پخپله ولس او مجاهدین دې اړیستل چې ددوئ پر وړاندې وسله واله مبارزه وکړي اودټوپک په زرو ددې بلا نه ځان خلاص کړي او.....او......او............

که امریکا اونور حلیفان یې رښتیا غواړې ،چې نور افغانستان کې دجګړې اور مړ شي او دوئ هم نور دخپلو وینو له تویدلو څخه نجات پیدا کړي، غوره لاره یې داده، چې خپل عسکر بې اوقید او بې شرطه له هیواده وباسي ،دمجاهدینو پرضدخپل حسادت او عداوت پای ته ورسوي او افغانانوته د خپل برخلیک ټاکلو فرصت ورکړي، نو شاید دا داسې پریکړه وي، چې هم به نړیوالوته ګټوره اوهم به افغان ولس ته نیکمرغي وروبخښي اوددوئ له غاړو نه به نړیوال مسؤلیت هم پورته او له ننګونو نه به خلاص شي !

# دوستم په شرمونو وشرمېد

■ حبیب مجاهد

د افغانستان د جګړو کرایي جګړه مار جنرال عبدالرشید دوستم چې په تیرو څو کلونو کې هر یرغلګر او غاصب واکمن د خپلو اهدافو لپاره د اجرتي قاتل په حیث جنګولی او د خپلو جنګي اهدافو بارونو یې پرې چلولي دي. په وروستیو پنځلسو کلونو کې یې د امریکایي یرغلګرو او د هغوی د ګوډاګیانو د جنګي حلیف او اجرتي ټوپکمار په حیث ظهور کړی.

دوستم لکه څنګه چې د امریکایي یرغل په لومړیو کلونو کې یې د شمال په سمنګان، بلخ او نورو سیمو کې دامریکایي یرغلګرو الوتکو تر وزرو لاندې د امریکا په مرسته او قومنده د افغان مجاهد اولس په وړاندې د یرغلیزې جګړې جنایت ترسره کړ، په دې وروستیو کې چې د ګډوله رژیم په تشکیل کې د ولسمشرۍ د مرستیالۍ په څوکۍ کینستی یو ځل بیا یې د امریکایي اهدافو لپاره د مجاهدینو په خلاف جګړو ته مخه کړې ده.

دوستم په تیرکال او سږکال کې څو ځله د افغانستان شمالي ولایاتو جوزجان، سرپل او فاریاب ته تللی، هلته یې له ځان سره په سلهاوو جنګیالي،درنې وسلې او هوایي ځواک انتقال کړې او د مجاهدینو په خلاف یې په مخامخ جګړو کې ونډه اخیستې.

خو د شمالي ولایاتو د مجاهدینو په وینا دوستم چې هر ځل هلته تللی> نو له غوڅ پوځي شکست سره مخامخ شوی او د جګړې په میدان کې یې درانه تلفات ګاللي.د اسلامي امارت په چوکاټ کې ددې سیمي مجاهدین چې مطلق اکثریت یې له اوزبک شریف قوم سره تړاو لري، وایي چې دوستم کله دې سیمو ته راشي او په جګړه کې شکست وخوري نو بیا د مخابرو له لارې په ازبکي ژبه په مجاهدینو غږ کوي او ورته وایي چې موږ او تاسو سره قومیان او د یوې ژبې خلک یو، نو تاسو ولې د طالبانو ملګرتیا کوئ چې هغوی د ددوستم په باور له بل قوم سره تړاو لري.

خو د سیمې مجاهدین ورته په ځواب کې وایي چې موږ د حق د لارې مجاهدین یو، د یرغلګر کفر په خلاف جنګیږو او اسلامي نظام مو

ارمان دی.موږ په جاهلانه عصبیت او قومیت باندې عقیده نلرو، اسلامي امارت د کوم خاص قوم تحریک نه دی بلکې د ټولو مسلمانانو کور دی.موږ ته مسلمان او مجاهد هغه که د هر قوم وي زموږ عقیدوي ورور دی او ستا په شان فاسق او د کفارو ملګری که څه هم په ژبه او نژاد را شریک وي موږ یې دښمن بولو او تر وروستۍ سلګۍ به ورسره وجنګیږو.

دوستم چې دا خبرې اورې نو د انتقام په خاطر په اولسي بې چارو خلکو بریدونه کوي او د طالبانو په نوم د اولسي- خلکو مالونه او شتمنۍ لوټ کوي چې په دې لړ کې یې د خلکو په سلګونو موټر، موټرسایکل او مواشي له ځان سره وړي او ډیرځله خو یې حتی د خلکو کورونه هم سوځولي دي.

د روان ۲۰۱٦ میلادي کال په نیمایي کې طالبانو د فاریاب ولایت د غورماچ ولسوالي فتحه کړه او خبره دې ته نږدې شوه چې د کندز د مرکز غوندې د فاریاب مرکز میمنه هم د طالبانو لاس ته ولویږي. دوستم چې فاریاب خپله د نفوذ سیمه بولي یو ځل بیا له لوی لښکر سره د فاریاب په خوا لاړ او د غورماچ د بیا نیولو لپاره یې خپل لښکر د جګړې ډګر ته ویوست.

خو د غورماچ په مربوطاتو کې طالبانو ددوستم په کاروان داسې بریالی کمین وواهه چې نوموړی یې د مرګ پولې ته نږدې کړ.دا ځل د دوستم په وړاندې د مجاهدینو جګړه د پخوا په نسبت ډیره تونده او له نویو تاکتیکونو سره همغاړې وه، نو ځکه دوستم اړ شو چې له درنو تلفاتو وروسته ډیر ژر په تیښته له غورماچ څخه وتښتي.

د افشا شویو معلوماتو له مخې د غورماچ په وروستیو جګړو کې ددوستم له سلو زیات ټوپکوال چې زیاتره یې دده شخصي- ګارډان دي وژل شوي او تر پنځلس زیات پوځي موټر یې د کمینونو او ماینونو خوراک شوي دي.

دغورماچ په ورستیو جګړو کې د دوستم څو تنو مشهور جنګي قومندانان لکه صادق قصاب،شاه محمد، مجید قره ترکمن،رسول او د نوموړي د شخصي ګارډ قومندان میرویس احمدي هم وژل شوي دي. دغه راز په جګړه کې د شمال لپاره د دوستم ځانګړی پوځي نماینده قومندان نظام هم مرګونی ټپي شوی دی.

د غورماچ په جګړه کې یو ځل د دوستم د ټپي کیدو خبر هم رسنیز شو چې ډاکټر عبدالله هم تائید کړ خو وروسته نوموړي رد کړ او ډاکټر

عبدالله ته یې د ښکنځلو تر حده تریخ غبرګون وښود.

د رسنیو معلوماتو له مخې د غورماچ له شکست او غاښ ماتوونکي ګوزار وروسته دوستم د لیونتوب تر حده ګنګس او سراسیمه شو، تردې چې په فاریاب کې یې د امنیتي غونډې په مهال د فاریاب والي ته مخامخ ښکنځلې وکړې او د هغه د وهلو هڅه یې وکړه،د امنیت ملي رئیس یې په برکناری وګواښه او د غفور پهلوان په شمول یې خو محلي پوځي قومندانان له دندو وشړل.

جوزجان ته په رسیدو د دوستم لیونتوب نور هم زیات شو، تر دې چې په شبرغان کې یې د یوې لویې غونډې په مهال داسې لیوني اظهارات وکړل، چې ښایي تراوسه کوم حکومتي چارواکي نه وي کړي.

دوستم اشرف غني او ډاکټر عبدالله دواړه قوم پرستان وبلل چې یوازې د قومي تړاو په اساس خلګ استخداموي، د ملي امنیت رئیس معصوم ستانکزی یې د برهان الدین رباني قاتل وباله او دایې هم وویل چې نوموړی له طالبانو سره لاس لري.

دوستم د ملي امنیت شورى چې خپله دی یې هم عضویت لري، په دې تورنه کړه چې په غورماچ کې یې دده د وژلو لپاره کمین طرح کړی و، خو ده ترې سر روغ ویوست. دوستم ګواښ وکړ، چې ده د اشرف غني غونډې ډیر خلک له واکه غورځولی او که وغواړي اشرف غني هم رانسکورولی شي.دوستم نورې هم هغه ناپرېتې وویشتې چې څو ورځې وربانـدې مطبوعات او د تلویزوني صاحب نظرانو بحثونه ښه ګرم وو.

خو د نوموړي ددې لیونیو اظهاراتو او باطني کړاو څخه معلومیږي ،چې نوموړي دا ځل د غورماچ له طالبانو سم ژور خرپ خوړلی، تردې چې دده دماغي نظام یې کاواکه کړی دی . ددوستم دغه وروستني متزلزل حالت ته په پام سره فکر نه کیږي، چې دغه د ختیو پړانګ دې بل ځل د قهرمانو مجاهدینو په وړاندې د جګړې ډګر ته د تلو زړه وکړای شي.

دوستم چې د شرق او غرب یرغلګرو د خپلو تبلیغاتو په زور ترې پهلوان او قهرمان جوړ کړی و، دا ځل یې په غورماچ کې داسې ګوزار وخوړ، چې اوس یې د جګړه ایز مورال په شان عصبي توازن هم بایللی دی .

* * *



# دنوي قائد ترقيادت لاندې ستر فتوحات
# او د دښمن ناکام تبليغات

حسن زوی

نن چې دابلاغ تېزو اوعصري وسايلونړۍ ديوکورپه څېر گرځولې ده په جنگونو کې د دښمن پر ضد تبليغات خورا کامیابه او مهمه وسله گڼل کېږي او ددښمن د تبليغاتو نه متاثره کېدل په جنگ کې د ماتې منلو په معنی وي.

امریکا او متحدینو یې چې هم خپل ښه ډېر نشراتي وسایل لرل او هم یې د نړۍ زیاتره نشر اتي اداري د پیسو او نورو لارو خپل لاس کې اخستی وې د خپلو او بهر نړۍ د دې رسنیو نه یې د جنگ د پیل کېدو نه وړاندې او د جنگ په جریان کې د یو فعال تلیغاتی مشین په توگه ښه ډېرکار واخست او له بده مرغه چې د اسلامي نړۍ ټول لبرال،سیکولراو ضعیف الایمان مسلمانان ددې تبلیغاتو نه متاثره شوی وو، بس د کلک ایمان نه برخمن مسلمانان چې د الله تعالی پر ذات یې نطر و او د الله تعالی په وعدو او مرستو یې یقین او دشریعت په تعلیماتو عمل کول او د خدای حکمونه منل یې اصل کامیابي گڼله یواځې همدوئ ددې تبلیغاتو نه، نه وو متاثره شوي او پدې یې یقین و چې سره د ټولو وسایلو به باطل ناکامېږي او وروستۍ فتح به د حق په نصیب کېږي،

د نړۍ په رسنیو کې د ډېرې مودې راهیسې ښه په لویه پیمانه د امریکا لپاره دا تبلیغات کېدل چې گواکې امریکا ناقابل شکست ځواک دی او په نړۍ کې هیڅوک داسې نشته چې د امریکا په مقابل کې دجنگ ډگر ته د راوتلو جرأت وکړي او یا یې په مقابل کې جنگ جاري وساتلای شي نو ځکه به د نړۍ ډېرې برخې په ډېرې حیرانتیاویل چې ولې طالبانو د امریکا غوښتنې و نه منلې او په کوم ډاډ او جرأت یې د امریکا مقابلې ته د راوتلو پریکړه وکړه؟

امریکا چې د تبلیغاتو په اهمیت ښه پوهېدله نو پر افغانستان د یرغل نه پس یې خپله تبلیغاتی دستگاه لاپسې قوی کړه ،په هېواد کې دننه او دهېواد نه بهر یې په سونو رسنۍ رامنځته او ټولی یې د خپلو موخو لپاره استخدام کړې او ریښتیا دا ده چې له دې رسنیو یې ښه ډېر کار واخست ؛په روان جنگ کې په ډېرو اړخونوکې د امریکا کمزوري راښکاره شوه او په یو اړخ کې هم د خپل ضعف په پټولو ونه توانېده خو دا باید ومنو چې تبلیغاتی دستگاه یې کمزوری نه شوه ؛د حقایقو د مسخ کولو هنر یې ډېر پرمختگ کړیدی او د خلکو د غولو مهارت یې لا ډېر قوی شویدی.

خپل کوچني پرمختگ ډېر غټول؛ دمقابل لوري فتوحات هم په شکستونو تعبیرول او یو کوچنی مشکل یې د ډېرې لویې ستونزې په شکل وړاندې کول د همدې تبلیغاتي هنر مظاهر دي.

د امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهدرحمه الله تعالی د وفات د خبر د خپرېدو نه پس د نوي امیر په صفت امیرالمؤمنین ملا اختر محمد منصور رحمه الله تعالی سره د امارت ټولو مشران بیعت کړی و خو چې د ګوتو په شمېر څو تنانو په بیعت کولو کې توقف کړی و نو دا یې د ټول امارت په دوه برخو په ویشل کېدوتعبیراوه اوپه ډېره منظمه توګه به یې د خپلو رسنیو له لارې په ډېر شدو مد دا خبره کوله چې طالبان نور په دوه برخو وویشل شول او له دې بعد یې په واحد قیادت راجمع کېدل ناممکن شول.

له دې لږه موده پس د اسلامي امارت یو کوچني یا لوی غړي هم داسې پاتې نه شو چې د امیرالؤمنین ملا اختر محمد منصور رحمه الله سره یې بیعت نه و کړی او په یوې وړې ساحې کې چې کومه مخالفه کوچنۍ ډله وه هغه هم باقي پاتې نه شوه خوپه دوه برخو د طالبانو د ویشل کېدو دا تبلیغات تر پایه وندریدل .

دا سمه ده چې امریکا په لاس د امیرالمؤمنین ملا اختر محمد منصور شهادت یوه لویه حادثه وه خو د مجاهدینو د مورال غورځولو او د نړۍ د مسلمانانو مایوسه کولو په موخه امریکا د خپلو رسنیو له لارې د اېښنه دومره لویه کړی وه لکه چې خدای مکړه اسلامي امارت ېخې د سقوط سره مخامخ کېدونکې او جهاد ودرېدونکی و .

بیا چې ټولو مجاهدینو او غیورو مسلمانانو شیخ الحدیث مولاناهبت الله آخنزاده د امیرالمؤمنین په صفت ومانه ؛د الله تعالی په فضل او کرم په ټول هېواد کې یو مخالف اواز هم راپورته نه شو او امریکا ته ددې تبلیفاتو ځای پاتې نه شو چې ګینې طالبان په دوه برخو وویشل شو نو داتبلیغات یې پیل کړل چې د طالبانو دا نوی مشر جنګي تجربه نه لری نو په کامیابۍ سره به د جنګ قیادت ونګړای شي او ژر به طالبان د جنګ ډګر کې ناکام شي.

د سیمې ډېر هغه وګړي چې ځانونه مبصرین پوهان او څېړونکي بولي د امریکا ددې تبلیغاتو نه متاثره شوی وو او هماغه د دښمن تبلیغات به یې په خپلو ژبو تکرارول .

دوئ دا خبره هېره کړې وه چې د اسلامي امارت اداره بهرته ساده ښکارېدونکې خو په حقیقت کې ډېره منظمه اداره ده ؛دلته شورا یې نظام دی ؛ په وراثت نه بلکې دا هلیت له مخې مشرانوته مشري ورسپارل کېږي ؛دعاموژمنومسلمانانوپه څېربه داسلامي امارت مشران اوکشران د قائدینو په تللو خامخا غمجن کېږي خو الحمدالله ګډوډي پکې نه راځي او نه یې هم نظم ته کوم اساسي تاوان رسېږي.

نړۍ باید په دی ځان پوه کړی چې هغه مشران طالبان چې د اسلامي امارت په چوکاټ کې یې له تېرو کابو ۲۰ کلونو راهیسې خدمتونه کړېدی هغه هر یو د سیاست او جهاد د ډګر ونو کامیاب شاه سوارادی ؛ پدې هم باید هر څوک ځان پوه کړی چې د طالب مجاهدینو جهاد د کوم مشر لپاره نه بلکې د

الله تعالی د رضا لپاره وی ؛ د مشرانو په تللو نه کمزوری کیږي او نه ودرېږي.

نو ځکه د شیخ الحدیث هیبت الله د راتللو نه پس نه یواځې دا چې د جهاد ډګر کمزوری نه شو بلکې لا پسې قوي شو، د همده ترقیادت لاندې کې له شمال تر جنوبه ډېرې سترې سوبې رامنځته شوې غونډې غونډې ولسوالۍ او فراخې سیمې فتحه شوې د دښمن ډېر ګڼ ستر فوځې مراکز ونیول شول دښمن ته ډېره درنده مزګ ژوبله واوښته او ښه ډېر حکومتی ملېشې مجاهدینو سره یو ځای شوې او اشغالګر امریکایې ځواکونه او د کابل اداره ددومره ورخطایې سره مخامخ شوه چې د خپلې ورخطایۍ په پټولو هم ونه توانېدل ؛سختې وېرې اخستی دي او هیڅ نه پوهېږي چې څه وکړي بس ایله همدومره څه ورپاتې دي چې آقا او غلام یو پر بل د شکستو ملامتیا ورواچوي.

موږ باوري یو او خپلو ګرانو هېوادوالو او ټول مسلمان ملت ته اطمینان ورکوو چې همدا صالح مشر چې دښمن ناتجربه کار ګڼلو د همده په مشرۍ کې به د مجاهدینو د فتوحاتو لړۍ لاپسې تېزه شي آقا او غلام دواړه به دسختنی تاریخی ماتې سره مخامخ شی د شریرو اشغالګرو د ناپاکو قدمونو نه به زموږ هېواد پاک او د شر نه به یې ټوله سیمه په امن کې شي.

* * *

رضوان الله (فیضاني)

# د نېزو شرنګ

په فطرت کې مې خوښ نه دی د بنګړو شرنګ
ورک شه ورک شه د پای زېب او د پاولو شرنګ

پرې عاشق یم صبرېدلی ترېنه نه شم
خوښ مې دی د سپینو تورو او نېزو شرنګ

رب جلیل ته هم بې حده ډېر محبوب دی
پښو لاسو کې د اسیر د زولنو شرنګ

چې زما د زړګي مینه پرې ماتېږي
خود به ستایم ذوالفقار او د برچو شرنګ

له باننګه شازلمیو سره ښایي
په پنجروکې د ولچک او هتکړو شرنګ

ذوالجلاله ته پخپل درکې قبول کړې
دا زمونږ د سپین خنجر د ګوزارو شرنګ

په پښوکې د زمریانو تل مدام وي
د درنو او وسپنیزو ځنځیرو شرنګ

( فیضاني ) زما ویده احساس راویښ کړي
د غازي جانان د تورې د وارو شرنګ

# جنرال دوستم؛

## بازیچه دست وحدت ملی!

# ابوصهیب حقانی

جنرال دوستم که تاریخ نامناسب و بسیار وحشتناک در افغانستان دارد ،همیشه به صورت مصرفی از او استفاده شده است مخصوصا پس از روی کار آمدن حکومت نام نهاد وحدت ملی (که جنرال دوستم من حیث معاون اول حکومت) با شریک شدن داکتر عبدالله به حیث قدرت دوم وحدت ملی، تمام صلاحیت و اختیارات معاونیت اول او تحت الشعاع قرار گرفت ،و به حیث یک نماد کاملا فرسایشی در بدنه ای فرسوده وحدت ملی درآمد.

از بی سوادی، کم عقلی، جهل و نادانی، عدم درک و دانش سیاسی و یا از سادگی و ساده دلی جنرال دوستم، اعضای وحدت ملی سوء استفاده کرده و او را بسیار زیرکانه از تمام مسائل ریز و درشت ارگ و مسائل پایتخت دور نگاه داشتند؛ اشرف غنی که روزی خود جنرال دوستم را یک دیکتاتور محلی می خواند فقط در موقع انتخابات به رای قوم ازبیک با استفاده از جنرال دوستم ضرورت داشت که تا حدودی در وقت انتخابات به این هدفش رسید و پس از آنکه در ارگ بر تخت تکیه زد؛ و باز وقتی شریک نو و دور از انتظار (داکتر عبدالله)، توسط امریکایی ها در بغل وی تراشیده شد، دیگر ضرورتی به جنرال دوستم ندید؛ و حتی با همدستی داکتر عبدالله و مشاورین خارجی و داخلی اش سعی در دور زدن و دورنگاه داشتن جنرال دوستم از مسائل مملکت داری و سیاست های ارگ کرده و او را با چند کلمه ای دروغین فریب داده یونیفورم نظامی به تن او کرده و وی را به میدان های جنگ گسیل داشت چیزی که در اوائل دوستم با علاقه مندی قبول کرد؛ اما رفته رفته وقتی از سیاست های مکرآمیز ارگ نشینان آگاه شد (و از آنجا که سواد سیاسی و توان فکری اداری و استفاده از چوکی نام نهاد که به نامش کرده بودند را نداشت یا اصلا بی صلاحیت بود که خودش نیز در یک اظهار نظر صریح به این موضوع اعتراف کرد) کار از کار گذشته بود؛ گاهی تعصب کرده چندین ماه به ترکیه پناه برد؛ گاهی چند صباحی در کابل دست به شکایت بازی از طریق رسانه ها زد و ... اما هیچ کدام به حالش

فایــده نکــرد؛ و اشرف از وی همـان کـاری را کشـیده و مـی کشد که به سـود او و تـیم هـم فکرش باشد نه به نفع جنرال و دار و دسته اش!؟

اما این جنرال بـی سـواد و در عـین حـال نـادان بـازهم ندانسته؛ چـون هرگـاه فشـاری از سوی طالبان بر سر نیروهای شکسـت خـورده حکومـت در مناطق شمالی کشور پیـدا مـی شود؛ هوشیارهای ظاهرا زیرک وحـــدت ملـــی، فـــوری او را یونیفـورم نظـامی پوشـیده و بـا شـاباس و آفـرین، چکچـک و هـوراء، بـه میـدان جنـگ مـی فرسـتند؛ امـا سـوال اینجاسـت که از رفـتن جـنرال بـه میـدان جنگ چه سود؟

آن هم میدان جنگـی کـه بارهــا جــنرال دوســتم در آن شکست خورده و ذلیل و ناکـام برگشــته و جــز چنــد عکــس فیســــبوکی و نمـــــایش در صفحات اجتماعی دیگر کـدام دسـت آورد نداشـته اسـت؛ بـا آنکه بارها لاف تصـفیه منـاطق شمال از وجود طالبان را داده است؛ اما جز آنکه خودش و ملیشـه هـای تحـت امر خود را به کشتن و تصفیه شدن داده، و دها عراده جات نظامی را سـالم از دست داده و به تعداد زیاد تجهیزات نظـامی را در نـبرد بـا طالبـان از بـین بـرده کمترین چـانس پیـروزی هـم نصـیب اش نشـده اسـت و ذلیـل و خـوار، تبـاه و برباد، شکست خورده و از هم پاشیده باز به کابل برگشته و خسارات هنگفتی را روی دست وحدت ملی گذاشته است؛ اما وحدت ملی ایـن زیـان هـای جـنرال دوستم را نادیده گرفته و تحمل مـی کنـد؛ چـون وجـود او در کابـل و در لبـاس شخص دوم مملکت را بیشتر به زیان خود می بیند؛ لذا همچنـان او را بـا دادن القاب دروغین و خیالی مورد تمجید و ستایش قرار می دهند .

تعجب اینجاست که مگر از حماقت یک انسـان، انسـان هـای اسـتفاده جو چندبار می توانند سوء استفاده کنند؛ که ایـن همـه اسـتفاده توسـط حلقـات خاص ارگ از جنرال دوستم می شود و آیا واقعا دوسـتم کـه خـودش پـاک بـی سواد است چهار مشاور با سواد خارجی و داخلی در اطرافش نیستند کـه او را از خواب حماقت بیدار کرده و بفهمانند که جز آنکه بازیچه ای دست وحدت ملـی گردیده و در دام القاب و القاءات دروغین ارگ نشـینان گیرمانـده؛ اصـلا بـرای سران وحدت ملی، حیات و حیثیت او مهـم نبـوده و دور کـردن دوسـتم از ارگ کاملا یک دسیسه سیاسی و عمدی است؟!؟

اما افسوس به حال آن مردمیکه بچه هـای نـازنین خـود را تحـت فرمـان شـخص جـاهلی مثـل جـنرال دوسـتم کـه از ظلـم و جنایـات وی کـل ملـت (بالاخص در صفحات شمال) در ستوه است به کشتن داده و به فرزنـدان خـود رحم نکرده و با اینکه از قبل، جنرال را بازنده اصلی و شکست خورده اول و آخر میدان های نبرد با طالبان می دانند باز هـم در مسـیر غلـط او جگرگوشـه هـای خود را تلف کرده و به حال خود و آینده شان رحم نمی کنند.

بـــه امیـــد شکســـت روز افـــزون پیـــروان باطـــل
در تمـــــــام میـــــــادین حـــــــق و باطـــــــل

# داسلام غزوات اوسرایا

دوهمه برخه
ابوظـــــهیر

## د مُرَیسیـع یا بَنی المُصطَلَق غَـزوه

دَعُوهَا فَانّهَا مُنتنَة

ژ: پریږدئ داخـبرې پـه تحقیق سره دا گنده او بد بویـه دي.

دا د رســـــــــول الله صَلَّىٰٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ مبارک ارشاد دی تـرې معلومـه شـوه چـې ښـې خبرې پاکې او خوشبو لرونکې دي او بدې خـبرې نـاولې اوبـد بویـه دي چـې پـه ظـاهري او حسي ډول دالله تعـالی اسـتازي ( انبیــاء ) علــیهم الســلام او دهغـــــوی وارثــــان یــــې محسوسوي.

وعن جابر رَضِيَٱللَّهُعَنۡهُ قـال كُنَّـا مَـعَ النَّبـی صـلَّی الله علیـه وسلم فَارتَقَت رِیحٌ مُنتَنَـةٌ فقـال رسولُ الله صَلَّىٰٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ اَتَدرُون مَـا هـذِهِ الـریحُ؟ رِیـحُ الّـذِینَ یَغتَابُونَ المُـؤمِنِینِ ( رواهُ احمـد وابــن ابــی الــدنیا رواة احمــد ثقات)

ژباړه: حضـرت جـابر رَضِيَٱللَّهُعَنۡهُ وايي:مـونږ درسـول الله صَلَّىٰٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ سره یوځای وو ناڅاپه سخت بدبوی پورته شـو رسـول الله صَلَّىٰٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ وفرمایـل: تاسوپوهېږئ چې دا بد بوی دڅه دی؟ دهغو خلکو د خولو ځي چې هغـوی اوس مهال دمسلمانانو په غیبت لگیا دي دا حدیث امام احمد او ابـن ابـی الـدنیا روایت کړی دی دامـام احمـد دسـند ټـول روایـان ثقـه دی ( ترغیـب وترهیـب للمنذري ۳ټوک ۳۰۰مخ چاپ مصر)

له دې حدیث ښکاره شوه چې رسول الله صَلَّىٰٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ او و ر سره هلته ناستو صحابه وو رَضِيَٱللَّهُعَنۡهُمۡ دغیبت بدبویې محسوس کړه! داچې هغـه بـدبویې دڅه شي له امله وه درسول الله صَلَّىٰٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ له وینا معلوم شو.

امام سیوطي رَحِمَهُٱللَّهُ په خصایص کبری کې (باب ما وقـع فـی غـزوة بنـی المصطلق من الایات) یعنې په غزوه بني المصطلق کې د لیدل شـومعجزو عنـوان لاندې دابو نعیم په حواله پورتنی روایت په لاندې الفاظو روایت کړی:

عن جابر قال کنا مع رسول الله صَلَّىٰٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ فِی سَفَر فَهَا جَت رِیحٌ مُنتِنَـة فَقَال النبیُ صَلَّىٰٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ اِنَّ نَا ساً مِنَ المُنا فِقِینَ اَغتَابُوا نَاساً مِنَ المُـؤمِنِین فَلِـذلِکَ هَاجَت هذهِ الرِیحُ.

ژ: د حضـــرت جـــابر رَضِيَٱللَّهُعَنۡهُ نـه روایـت دی وایـي مـونږ درسـول الله صَلَّىٰٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ سره په یو سفر کې ملگري وو ناڅاپه سخت بدبوی پورتـه شـو ( چې غالباً وړانـدې نـه و لیـدل شـوی و او نـه اوریـدل شـوی و) رسـول الله صَلَّىٰٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ وفرمایل: (تاسو په دې عجیبه او نـا اشـنا بـدبوی حیرانیـږئ مـه) اوس څوتنو منافقینو دمومنانو غیبت وکړ په دې وجه دا بد بوی راغی، یعنې داد مومنانو دغیبت عفونت دی په دې وجه پکې شدت او غرابت زیات دی

دحافظ سیوطي رَحِمَهُ ٱللَّهُ له خبرې معلومیږي چې دغیبت دبد بوی واقعه په بنی المصطلق غزوه کې پېښ شوې او هم دې ورته یوه واقعه مدینې منورې ته څېرمه هم شوې څنګه چې په صحیح مسلم کې دحضرت جابر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ نه روایت دی: چې کله مونږ دبني المصطلق عزوې څخه بیرته راتلو مدینې منورې ته نږدې رسیدلي وو ناڅاپه یوه ډېره بد بویه او متعفنه هوا راغله، رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: دا بدبویه هوا دکوم منافق سړي د مړینې ده ( خصائص کبری ۱ټوک ۲۳۲مخ)

غالباً دکوم منافق سړي دخبیث او ناولي روح دهغې دښتې تولــه خــلا متعفنه ګرځولې وه، چې رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او دهغه ملګرو رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُمْ هم محسوس کړه.

نومیالی سیرت لیکونکی او محدث مولانا محمدادریس کاندهلوي رَحِمَهُ ٱللَّهُ لیکلي: څښتن تعالی پخپلو غوره بنده ګانو دکفر نجاست اونحوست منکشف کړی، په دې وجه یې په وړاندې سر ښکته کول اومنل پکاردي لکه یوزکام نیولی او بې حسه سړی چې دګلاب خوږ بوی او د متیازو بدبوی نه محسوسوي او دا په صحیح الحواس حجت نده چې هغه دې هم نه محسوسوي، هم داسې دپاکو کلماتو پاک او خوږ بوی او دخبیثه کلماتو خبث او بد بوی غوره بنده ګان محسوسوي.

بهر ازین باید حواس اهل دل

په جامع ترمذي کې له عبد الله بن عمر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ روایت دی چې رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایلي:

اِذا كَذب العبدُ تَبَا عَدَ عَنهُ المَلَکُ مِیلاً مِن نَتنِ مَاجَاء بهِ

ژ: هرکله چې یوتن دروغ وایي، نو فرښته د دروغو بدبوی له وجې یومیل لرې درومي. ( ترمذي شریف ۲ټوک ۱۰مخ)

په مسند احمد ، جامع ترمذي، سنن ابي داود، نسائی او مستدرک حاکم کې له ابوهریرة رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ څخه روایت دی چې رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل:

کوم خلک چې دیو مجلس څخه دالله تعالی دذکر پرته پاځي ګویاچې دمردار خره( جیفه حمار) څخه پورته شي

امام ترمذي وایي: چې دا حدیث حسن دی حاکم وایي: په شرط دمسلم صحیح دی دبخاري او مسلم په قدسي حدیث کې دي چې:

کله چې یو بنده دکوم نیک عمل اراده وکړي نو فرښتې دهغه عمل کولو څخه وړاندې یواځې په اراده کولو سره دهغه لپاره یوه نیکې لیکي، او دکولو څخه وروسته دلسو څخه نیولې تر او وسوه پورې نیکیانې ورته لیکي، او کله چې بنده دبدې اراده وکړي څو چې یې ونکړي ترهغه یې بدې نه لیکي

دپورته حدیث نه معلومه شوه چې کراماً کاتبین فرښتوته دانسانانو دقلبې ( زړه) ارادو په اړه هم څه نه څه خبروړکول کېږي ولې که نه ورکول کېږي نو یواځې دنیکۍ په اراده کولو سره هغوی څنګه نیکې لیکي.

ابو عمران جـواني وايـي:
دغه مهال فرښتوته اواز کېږي چې دفلاني په عمل پاڼـه کـې دا نیکـې ولیکـئ فرښـتې عـرض کوي اې الله ! هغه خو دا نیکي نده کړې ځواب ورکول کېږي: هو! اگرکه نیکي يې نـده کـړې خو دکولو يې اراده کړې.

سفيان بن عنيينـه رَحِمَهُ ٱللَّهُ وايي:

کلـه چـې بنـده دکـومې نیکۍ کولو اراده وکړي دهغـه دننـه ديـوې داسـې پـاکيزه او خوږې خوشبويې وږمې پورته شي چې فرښـتې پـو شـي چـې هغه دکومې نیکـۍ اراده وکـړه اوکله چې دبـدۍ اراده وکـړي دهغه دننه يو خبيث بـد بـوی پورته شي چې دهغه پـه سـبب فرښتې پو شي چې دبدۍ اراده يې وکړه .

حافظ عسـقلاني رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمـايي دامضـمون طـبري لـه ابومشعر مدني څخه نقـل کـړی دی او مـــا پخپلـــه دحـــافظ مغلطـايي پـه شرح کـې پـه دې مضمون يو مرفوع حديث هـم ليدلی دی.( فتح الباري ۱۲ټوک کتاب الرقاق باب من هم بحسنة او بسية ۲۷۸مخ)

څنگه چې هر عطر جلا خوږ بوی لري عجيبه نـده چـې هـم داسـې دي هره نیکي جلا خوږ بوی ولري څنگه چې عطر جوړونکې او عطر پلورونکې عطر په بويولو سره پيژني چې دا دفلاني عطر خوږ بوی دی ممکن ده فرښتې هم دخوشبويي په بويولو سره معلوموي چـې دا دفـلاني عمـل خوشـبويي ده .والله سبحانه وتعالى اعلم وعلمه اتم واحكم

څنگه چې په همدې بني المصطلق غـزوه کـې عبـد الله بـن ابـی او دهغـه ملگرو ویلي وو چې کله دوی بيرته ستانه شي عزتمن به له مدينې څخه زليلان باسي! کله چې دهغه ځوی چې هغه هم عبد الله نوميـده خـبر شـو نـو پلاريـې ونيو او ورته وي ويل:

په خدای سوگند ترهغه به تا مدينې ته پرينږدم چې لاړشي څـو اقـرار ونکړي چې ته ذليل يې! او رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عزتمن دی.

هرکله چې پلار يې پورته اقرار وکړ بياايله يې پريښود.

حافظ عسقلاني وايي پورته واقعه ابـن اسـحاق او طـبري هـم راوړې ده ( فتح الباري سورة المنافقون)

عبد الله رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ (بن عبدالله بن ابی ابن سلول) چې کله مدينې منورې تـه ورسيد درسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شو او عرض يې وکړ:

یار سول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته خبر رسیدلی چـې تـه زمـا پـلار د وژلـو حکم کوي که اجازه وي زه پخپله دخپل پلار سر قلـم کـوم او تاتـه يـې راوړم اوکه ته بل چا ته د هغه قتل حکم کوي هسې نه زه په غوصه شم او په جوش کې دخپل پلار قاتـل قتـل کـړم، پـه دې سره بـه زه ديومسـلمان دقتـل مرتکـب وگرځم.

رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه دخپل پلار دقتل کولو څخه منع کړ او ورته يې دهغه سره داحسان او ښه سلوک کولو حکم وکړ .

نوربيا ...

# دجهاد فقهي مسائل

مفتي ابو محمد (حقاني)
(۳۲برخه)

## کفارو سره دجګړې د اختتام اسباب:

## اسلام منل، جزیه ورکول، یا سوله!

**دسولې تړون له چاسره جایز دی؟**

فقهاء رح فرمايي : چې دسولې تړون يا معاهده ، ددريو ډلو سره روا ده اوپدې مسئله کې دځينو اړخونوپه اړه څه کلام شته، چې وروسته به له تقصيل سره راشي ، دادرې ډلې چې اسلامي شريعت ورسره دځينو مصالحو له مخې روغه جوړه روا بللې په لاندې ډول تشريح کيږي.

**الف :** اهل الحرب (عام ددې نه چې دا اهل کتاب وي که غير اهل کتاب ).

**ب :** مرتدين يا هغه څوک چې د اسلام له منلو نه پس يې ارتدادکړی وي .

**ج :** بغات يا هغه څوک چې ديوه مسلمان امام پر خلاف يې پاڅون يا بغاوت کړی وي.

**الف : له اهل حربو سره دسولې تړون :**

له اهل حرب (محاربو کافرانو)سره مهادنه يا دسولې تړون شريعت کې جايز دی، اهل کتاب که هرڅوک وي، ورسره سولې کولو کې کوم ډول حرج نشته ،دا اهل حرب که اهل کتاب (يهود او نصارى وي)او که نور مشرکين وي، ددې لپاره چې دعامو محاربينو سره دسولې تړون جايز دی،په (الموسوعة الفقهية) کې يې ددې داثبات لپاره په منصوصي دليل کې داقول دباري تعالى ذکر کړی دی، چې فرمايي : { بَرَاءَةٌ مِنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ إِلَى الَّذِينَ عَاهَدْتُمْ مِنَ الْمُشْرِكِينَ فَسِيحُوا فِي الْأَرْضِ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَاعْلَمُوا أَنَّكُمْ غَيْرُ مُعْجِزِي اللَّهِ وَأَنَّ اللَّهَ مُخْزِي الْكَافِرِينَ وَأَذَانٌ مِنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ إِلَى النَّاسِ يَوْمَ الْحَجِّ الْأَكْبَرِ أَنَّ اللَّهَ بَرِيءٌ مِنَ الْمُشْرِكِينَ وَرَسُولُهُ فَإِنْ تُبْتُمْ فَهُوَ خَيْرٌ لَكُمْ وَإِنْ تَوَلَّيْتُمْ فَاعْلَمُوا أَنَّكُمْ غَيْرُ مُعْجِزِي اللَّهِ وَبَشِّرِ الَّذِينَ كَفَرُوا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ إِلَّا الَّذِينَ عَاهَدْتُمْ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ثُمَّ لَمْ يَنْقُصُوكُمْ شَيْئًا وَلَمْ يُظَاهِرُوا عَلَيْكُمْ أَحَدًا فَأَتِمُّوا إِلَيْهِمْ عَهْدَهُمْ إِلَى مُدَّتِهِمْ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِينَ } سورة التوبة / ۱ ـ ٤ .

دسورت توبې ددې کريمه آيت له عموم څخه معلوميږي، چې سوله له هر ډول محارب سره ممکنه ده، هغه که مشرک دی، که يهودي که نصارني اوکه نوردي ،دلته چې دمشرکينو سره دسولې معاهده روا شوه ،نو داهل کتابومحاربينو سره هم رواشوه ،دوئ دهغوئ نه په کفر که څه را ټيټ دي ،البته دسولې لپاره مومخکې بحثونو کې شرطونه واضح کړي دي،چې هغه شرطونه موجود شي ،بيا ورسره سوله شونې کيدای شي .

**ب :له مرتدينو سره دسولې تړون :**

په (بدائع الصنائع للكاساني) او( فتح القديرلابن الهمام رح) کې چې دحنفي مذهب خورا معتمد او باوري کتابونه دي ،دمرتدينو سره دسولې معاهده یا تړون جايز بللی، خو یو لړ شرطونه يې هم ددې روغې جوړې لپاره وضع کړي دي ،چې تفصيل يې ددې حوالو سره کټ مټ داسې ليکلی :

احناف سادات فقهاء رح فرمايي له مرتدينو سره سوله روا ده، خو چې کله لاندیني صورتونه وي :

وتجوز موادعة المرتدين إذا غلبوا إِذَا غَلَبُوا عَلَى دَارٍ مِنْ دُورِ الْإِسْلَامِ وَصَارَتْ دَارُهُمْ دَارَ حَرْبٍ ، وَخِيفَ مِنْهُمْ وَلَمْ تُؤْمَنْ غَائِلَتُهُمْ لِمَا فِيهِ مِنْ مَصْلَحَةِ دَفْعِ الشَّرِّ لِلْحَالِ ، وَرَجَاءَ رُجُوعِهِمْ إلَى الْإِسْلَامِ وَتَوْبَتِهِمْ ، وَلَا يُؤْخَذُ مِنْهُمْ عَلَى ذَلِكَ مَالٌ ، لِأَنَّ الْمَالَ الْمَأْخُوذَ عَلَى تَرْكِ الْقِتَالِ يَكُونُ فِي مَعْنَى الْجِزْيَةِ ، وَلَا تُؤْخَذُ الْجِزْيَةُ إلا مِنْ كَافِرٍ .

أَمَّا إذَا لَمْ يَسْتَوْلُوا عَلَى بَلْدَةٍ وَلَمْ يَكُنْ لَهُمْ كِيَانٌ فَلَا يُعْقَدُ لَهُمْ هُدْنَةٌ ؛ لِأَنَّ فِي ذَلِكَ تَقْرِيرَ الْمُرْتَدِّينَ عَلَى الرِّدَّةِ(بدائع الصنائع ٧ / ١٠٩ ، وفتح القدير ٥ / ٢٠٧)

ژباړه : له مرتدينو سره سوله روا ده ،خو هغه وخت چې مرتدين په کومه سيمه ،ښار یا هيوادباندې متغلب شول او په زور او جبر يې دټوپک او ډنډې په مټ ددې ځای خلک تر خپلې واکمنۍ لاندې راوستل ،ددوئ دا اشغال شوي سيمه ،هيواد یا کوم ښار دارالحرب وګرځيد،ددې مرتدينوڅخه خطرموجود وواو کوم اطمينان ددوئ له شرارت څخه نه و موجوداو دې مصالحت کې داوسمهال لپاره دشر دفعه وه او ددې اميد هم وو،چې دوئ به له ارتداده توبه وباسي او اسلام ته به رجوع وکړي ،نو پيسې به پدې سوله کې نه اخلې ،ځکه پيسې چې دترک القتال په بدل کې اخستل کيږي ،هغه دجزيې په معنی سره وي اوهغه له کافرو څخه اخستل کيږي، خوکه چيرته داسې صورت وي، چې دا مرتدين عناصر په کومه سيمه ،هيواد یا علاقه متسلط او واکمن نه وي ،نه يې کوم اداري جوړښت ،تشکل او سياسي سيستم وي، نوپدې مذکور صورت کې ورسره دسولې تړون نه دی روا ،داځکه چې په لوس لاس دوئ ته قوت ورکول اوپه ارتدادیې نور هم غښتلي کو ل دي .

ددې څخه داڅرګنده شوه، چې له مرتدينو سره دسولې معاهده مشروطه پدې ده، چې دوئ کوم سياسي ،نظامي او اداري جوړښت ولري ،دحکومتي تشکيل له مخې پر یوه ځای واکمن وي، منظم ډول چاري سنبالوي ،نو ددې لپاره چې دوئ اسلام ته رجوع وکړي او خلک يې له شرارتونو څخه بچ پاتې شي ،نو بيا به اسلامي حکومت ورسره سوله کوي او که داسې کوم قوت يې نه درلود، بلکې یو څوکسو داسې غلطه لاره نيولې وه اوددې مذکوروخطراتو احتمال تري نه هم و،نو بيا ورسره سوله کول نادرست دي او پدې سره دوئ په ارتدادکې لا پسې پياوړتيا ته هڅول کيږي، نو بايدچې اجتناب ترې وشي .

مالکیان حضرت فقهاء رح فرمايي : چې که چېرته کومه ډله پداسې وخت کې مرتد ه شوه ، چې دوئ په اسلام متقرراو محکم وواو مونږپرې قادر شواو غلبه مو پرې وموندله ،نوددوئ حکم به داسې وي، لکه دمسلمانانوداصلي مرتدينونو! پدوئ به دداسې مرتد حکم کيږي، لکه چې په هغه مسلمان چې کوم حکم کيږي ،چې هغه له اسلام منلووروسته مرتدشوی وي، نه دهغو کافرو چې هغوئ خپل عهد اوتعهد نقض کړی دی(جواهر الإکليل ١ / ٢٦٩ ، ومواهب الجليل ٣ / ١ ٣٨ ـ ٣٨٦ .) .

شوافع او حنابله حضرات فقهاء رح فرمايي چې :کله مرتدين له مسلمانانوڅخه جلا داسې يوې سيمې يا وطن ته غونډ شول ،چې هلته دوئ خپله دفاع کولای شوه اوهلته يې قوت پيدا کړ،نو له هغې نه وروسته چې ورسره داسلام په باره کې مناظره وشي او دلايل ورته واضح شي ،قتال او جګړه يې پر خلاف واجب ده او دوئ سره به ،له انذار اواعذار نه وروسته داهل حربو غوندې قتال کيږي (الأحکام السلطانية للماوردي ص ٥٦ ، والحاوي ١٦ / ٤٢٥ ، وکشاف القناع ٦ / ١٨٣ ، والأحکام السلطانية لأبي يعلی ص ٥٢ .)

**ج : له باغيانو سره روغه جوړه کول :**

په (الموسوعة الفقهية) کې ليکي چې : دفقهاوو رح ترمنځ پدې کوم اختلاف نشته، چې له ياغيانو سره سوله يا معاهده په پيسو نده روا ،که احيانا بيا هم دمسلمانانوامام ورسره په پيسو ورکولو سوله وکړه، دا دسولې يا موادعې تړون يې باطل دی (الأحکام السلطانية لأبي يعلی ص ٤٠.)،)که چيرته دوئ (باغيانو )دسولې مطالبه وکړه، او مسلمانانوته يکې خير و،نو حکومت به ورسره دمسلمانانو دمصلحت له مخې او له مال نه پرته سوله وکړي، که چيرته ددې باغيانوڅخه داسې څه معلوميدل، چې اطاعت به وکړي او حق ته به رجوع وکړي ،نو دمسلمانانوامام به ورته مهلت ورکړي ،(ابن المندررح)وايي : چې ټولوعلماوو پدې باندې اجماع کړې ،که چيرته ددې باغيانواراده داسې معلوميده، چې دوئ لګيا دي، خپل ملګري راټولوي ،طاقت ډيروي او دقتال اراده يې ده، يا غواړي ،چې په کوم چل ول پاچا يا امام قتل کړي، نو بيا به امام ورته صبر نه کوي او حمله به پرې کوي . دا مسايل لاندنيو فقهي کتابونوکې ليکل شوي دي (الفتح ٤ / ٤١٥ ، حاشية ابن عابدين ٣ / ٣١١ ، الشرح الکبير وحاشية الدسوقي ٤ / ٢٩٩ ، التاج والإکليل ٦ / ٢٧٨ ، المهذب ٢ / ٢١٩ ، المغني ٨ / ١٠٨ .)

چې پورتنی مفهوم په الموسوعة الفقهية کې پدې عبارت را نقل شوی : لا خِلافَ بَيْنَ الْفُقَهَاءِ فِي أَنَّهُ لا يَجُوزُ مُوَادَعَةُ الْبُغَاةِ بِمَالٍ . فَإِنْ وَادَعَهُمُ الإِمَامُ بِمَالٍ بَطَلَتِ الْمُوَادَعَةُ ، وَإِنْ طَلَبُوهَا أُجِيبُوا إِذَا كَانَتْ بِغَيْرِ مَالٍ وَكَانَ فِي عَقْدِهَا مَصْلَحَةٌ لأَهْلِ الْجَمَاعَةِ ......

نوربيا.........

* * *

(سعید بدخشاني)

# طالبان

## دوستم را به زانو در آوردند

جنرال دوستم وملیشهای پرورده وی که در چندین دهه گذشته در کشتار دسته جمعی،قتل عام،ظلم،وحشت،فحشاء،چور وچپاول اموال ملت مظلوم شهرت ونقش عمده ای داشت ونیزدارد،وبه شکل مستمر آله دست بیگانگان ویاهم منحیث یک جلاد قسی القلب جهت تطبیق اهداف شوم کشور های کفری برملت متدین افغان تحمیل، ودست به مظالم وجنایات نابخشودنی زده است که هیچگاهی ملت شریف افغان و تاریخ آنرا فراموش نخواهند کرد.

جنرال بی سواد(دوستم) در وقت اقتدار داکتر نجیب کمونیست بحیث قوماندان جنگی گماشته وبه ولایات مختلف مانند کندهار،خوست وکندز اعزام شد که در این ولایات هزاران مردم بی دفاع اعم از خانم ها،اطفال ومحاسین سفیدان را بخاک وخون کشانید ودارای های مردم را به یغما بُرد.

آری!دوستم در افغانستان بجز تبهکاری،فساد نسل کُشی دیگر کاری انجام نداده است،همین است که کفر جهانی بسرکردگی امریکا وی را بار دیگر برملت ستم دیده کشور مسلط ساخت،حالا این خائن ملی زیر نام های جنگ با مجاهدین براقوام مؤمن کشور جور وظلم می نماید.

اما طالبان یگانه نیروی اند که جنرال دوستم کمونیست وملیشهای غارتگر اش را درس عبرت دادند، غرور وتکبر وی را بخاک یکسان وحتی که آنرا در وقت اقتدارامارت اسلامی تا به ترکمنستان دوانیدن،ودر این دوراشغال امریکایها نیز کوبیده شده است وتاب مقاومت در برابر مجاهدین را ندارد.

شکست فضاحت بار دوستم گلم جم

مانند سالیان گذشته امسال یکبار دیگرنیز دوستم جنگسالار با بسیار کبر ودبدبه به اصطلاح غرض پاکسازی ویا بازپسگیری ولسوالی ها ومناطق از دست رفته عازم ولایت فاریاب شد



وعملیات گسترده ای را برعلیه مجاهدین آغاز کرد ، که خوشبختانه به کمین وضربات مرکبار مجاهدین برخورد وبشمول چندین قوماندان بلند رتبه وگارد خاص وی دها ملیشه گلم جم کشته واجساد شان درمیدان نبرد ماند،همینگونه وسائط،اسلحه و مهمات هنگفتی غنیمت رادمردان اسلام گردید.

پس از آن که کاروان دوستم به محاصره شدید قطعات خاص وضربتی مجاهدین امارت اسلامی درآمد ونهایت کوبیده ومتقبل تلفات سنگین شد،سروصداها از داخل اداره کابل بلند شد که دوستم را دریابید!و امرالله صالح اعتراف کرد که کاروان حامل جنرال دوستم تحت محاصره وحملات شدید طالبان قرار گرفته است وحتی از وی اطلاعی نیست،ودر شبکه های اجتماعی اخبار کشته شدن آن نیز بنشر رسید.

بلا تردید قوه عملیاتی دوستم کمونیست در اثر حملات تهاجمی وکمر شکن مجاهدین متلاشی،کشته،زخمی ومتباقی فرار وبه کوها متواری شدند.

ملیشه های گلم جم طبق عادت دیرینه خویش غرض اخذ انتقام دست به کشتار مردم ملکی وبی دفاع زدند،و در این جریان دها کودک،خانم ومحاسین سفید را در غورماچ ،قیصار ودیگر مناطق فاریاب شهید،مجروح،همچنان دها باب حویلی مسکونی مردم بیچاره را به آتش کشیدند،اموال ودارای آنها را چور وچپاول نمودند.

شایان ذکر است که دوستم در چهار دهه با کمال وقاحت بالای ملت مظلوم افغان جبر وظلم نموده واز هیچ جنایت در برابر مردم دریغ نکرده است،بلکه این خائن بین المللی نسل کشی نموده است.

اگر شما شنیده باشید در این روزها اکبر بای یکی از بزرگان ترکتباران کشور،بصرحت لهجه بیان داشت که دوستم خود مکرراً اعتراف کرده است که من از موی سر خود بیشتر پشتون ها را کشته ام،واز جنایت نابخشودنی وضد بشری بزرگتر وی در دشت لیلی نیز نامبرد که هزاران تن را پس از تسلیم شدن با بسیار بی رحمی وقساوت لقلب بطور دسته جمعی بشهادت رسانید، این سفاک از هیچ وحشتی بر ملت متدین کشور دریغ نکرده ونمیکند.

دوستم گلم جم ولشکریان جانی وی هرگاهی در برابر سپاه طالبان شکست خورده است ومجالی مقابله با آنها را نداشته ونخواهد داشت،لذا ملت مسلمان ما اعم از جوانان، سالخوردگان، علماء،دانشگاهیان و..... در پهلوی برادران مجاهد ومبارز خود بایستند تا که به یاری پروردیگار وهمکاری ملت ،بساط اشغال،ظلم،غارت،قتل،فساد،فحاشی وهمه نابسامانی های کشور برچیده ویک نظام شرعی که تضمین کننده عدالت،امانت،امنیت ورفاه ملت است حکم فرما گردد.وماذلک علی الله بعزیز

# د دیني عالم او د هلاکوخان د لور سوال او ځواب

ژباړه: عبدالمجيد جواد

د تاتاريانو له سوبې وروسته د هلاکو خان لور له څو تنو عسکرو سره په آس سپره د بغداد په ښار کې روانه وه چې د خلکو په يوې ګڼې ګوڼې باندې يې سترګې ولګيدې،پوښـتنه يـې وکړه چـې دا خلـک ولې داسې راټول شوي دي، څه کيسه ده ؟ورته وويل شول : چې دا خلک يوه عالم شخص نه راټول شوي.او د هغه وعظ او نصيحت اوري.د هلاکو خان لور خپلو عسکرو ته وويل چې دا عالم دې زما مخې ته راوړل شي،عسکرو يې امر پر ځای کړ او هغه ديني عالم يې د هغې مخې ته حاضر کړ،تاتاري شهزادګۍ له عالم څخه سوالونه شروع کړل.

شهزادګۍ: آيا تاسو پر الله ايمان لرئ.؟

عالم: هو بلې يقينا مونږ په الله باندې ايمان لرو.

شهزادګۍ : آيا تاسو پر دې خبرې ايمان لرئ چې د الله چې چاته خوښه شي ،هغو ته په نورو غلبه ورکوي.؟

عالم: هو بالکل مونږ پر دې خبره ايمان لرو ،چې د الله چې چاته خوښه شي، هماغه غالب کوي.

شهزادګۍ: نو نن الله مونږ پر تاسو غالب کړي نه يو؟

عالم : هو نن وخت تاسو پر مونږ غالب ياست.

شهزادګي: نو دا د دې دليل نه دی، چې الله ته له تاسو نه مونږ ډير ګران يو؟

عالم : نه بالکل نه!! دا خبره د دې دليل نه ده.

شهزادګۍ: ولې؟

عالم: تا کله شپون ليدلی دی؟

شهزادګۍ: هو.

عالم : دا به دې هم ليدلي وي ،چې شپنو يو څو سپي هم ساتلي وي، چې د رمې تر شا يې روان وي .؟

شهزادګۍ: هو دا مې هم ليدلي.

عالم: ښه نو کله چې يو څو ميږيان وزې له رمې نه بيلې شي، د شپانه نه اوري او په بلې خوا روانې شي نو شپون څه کوي؟

شهزادګۍ: شپون له رمې نه جدا شويو ځاروو پسې خپل سپي خوشې کوي، تر څو هغوئ بيرته خپلې رمې ته راوګرځوي.

عالم: شپون دغه سپي تر کومه دغو بې لارو شويو ځاروو پسې خوشي کړي وي؟

شهزادګۍ: تر هغو پورې تر څو يې چې بيرته راګرځولي نه وي .

عالم: نو تاسو تاتاريان هغه سپي ياست، چې الله جل جلاله مونږ مسلمانانو پسې پريښي ياست،تر څو پورې چې مونږ د الله له لارې کاږه روان يو، د الله حکمونه نه منو، د الله بې اطاعتي کوو،خپل منهج او مسير باندې نه ځو، تر هغو پورې به تاسو تاتاريان سپي پرمونږ مسلمانانو باندې مسلط ياست.او زمونږ امن ، سکون او ازادي به مونږ باندې حرامه وي.او کله چې مونږ خپلې لارې او مسير ته بيرته راوګرزيدو.پر خپل دين مو بيرته منګولې ولګولې د الله نافرماني مو پريښوده .نو ستاسو ورځې به ختمې شي ، مونږ به غالب يو او تاسو به مغلوب او زمونږ غلامان به شئ......

(له نن ټکي اسيا نه په مننه)



# د اختلاف شرعي

## ضوابط او آداب

مولوي میرعباس گوهري

حقیقت دا دی چې الله متعال انسان د کایناتو په منځ کې د ټولو ژوندیو موجوداتو په پرتله داسې یو عزتمند مدني مخلوق پیداکړی دی ،چې د نورو انسانانوسره ګډ ژوند خوښوي او د یوازې والي او تنهایي نه کرکه او نفرت لري، خو که له یو طرف نه لکه څنګه چې په څرګنده ټول انسانان د ظاهري جوړښت، رنګونو، قومونو، سیمو، عقلونو او علمي کچې په لحاظ یو له بل سره ډېر توپیرونه لري، له بل طرف نه د ده د وجود په داخل کې الله جل جلاله داسې یو فطري صفت او غریزه پیدا کړې، چې پربنیاد یې غواړي همېشه باید دژوند په ټېلابېلو برخو کې پر نورو په هرلحاظ پورته والی او اوچتوالی ولري، هېڅ کله نه غواړي چې نور انسانان دې د ژوند په یوه نه په یوه برخه کې پر ده امتیاز ، فوقیت او برتري ولري ،کله چې انساني ټولنه کې هر وګړی د دغه ظاهري توپیرونو او دغه فطري غوښتنې پربنیاد همېشه په نورو د برترۍ او امتیاز په هڅه کې وي، نو د دې ټولو حتمي او طبیعي نتیجه دا راوځي چې د انسانانو ترمنځ به په ورځني ژوندانه کې له یوبل سره د خپلو مادي او معنوي منافعو پر خوندي کولو او یا لاسته راوړلو ضرور مخالفتونه او فاصلې منځ ته راځي.

اسلام چې یو اجتماعي او ټولنیز دین دی، نه غواړي چې د ټولنې د وګړو ترمنځ دی د یوبل سره د دښمنۍ، کرکې او نفرت په نتیجه کې بې نظمي، ګډوډي او بې اطمیناني موجوده وي ،نو څکه خو یې دغو ټولو حقایقو او واقعیتونو ته په کتنه د انسانانو ترمنځ د اختلاف په صورت کې یو لړ داسې بنسټیز اصول، ضوابط او آداب وضع کړي چې له یو طرف نه د انسانانو د دغه فطري صفاتوسره د یو حقیقت او واقعیت پربنیاد تعامل ترسره شي او له بل پلوه نظري اختلاف چې د یوې انساني ټولنې د وګړو لپاره د پرمختګ اساس تشکېلوي داسې اندازې ته ونه رسېږي چې د ژبې او قلم عفت، انساني کرامت ترپښو لاندې شي او د دوی ترمنځ د ورور ګلوۍ، او یووالي فضاء له منځه لاړه شي . مخکې تر دې چې زه دغه اصول، ضوابط او آداب ذکر کړم د موضوع د لا ښه روښانتیا لپاره غواړم لومړی د اختلاف تعریف او ډولونو ته په لنډه توګه اشاره وکړم:

**تعریف:**

خلاف او اختلاف دواړه د مصدر صیغې دي او د جمهورو علماوو په وړاندې په لغت کې د اتفاق او یووالي ضد او مقابل لوري ته ویل کېږي البته د خلاف

او اختلاف الفاظ عام دي او د ضد لفظ خاص دی پدې معنی چې هر مخالفت ته د بل په مقابل کې ضد نشي ویل کېدای، خو د هر شي ضد ته د بل په مقابل کې مخالفت ویل کېږي د مثال په توګه تور او سپین رنګونه په خپل منځ کې هم یو د بل ضد او هم مخالف ګڼل کېږي خو سور او شنو رنګونو ته بیا یو د بل مخالف ویل کېدای شي خو یو د بل ضد ورته نشي ویل کېدای.

**په اصطلاح کې:**

خلاف یا اختلاف دېته ویل کېږي چې په ټولنه کې یو تن د بل تن یا یوه ډله د بلې ډلې نه په عمل او یا وېناکې مخالف جهت او جدا لاره غوره کړی یا په لنډ عبارت سره – د قول اوعمل په ډګرکې دیو چا په مقابل کې مخالف لوري نیولو ته اختلاف ویل کېږی.

## داختلاف ډولونه:

### ۱ :اصولي او حقیقی اختلاف:

دا ډول اختلاف په انساني ټولنه کې د یو لړ هغو اسلامي او دیني بنسټیزو عقایدو، ارزښتونو او مسایلو د منلو او نه منلو پر اساس ولاړ دی چې د مسلمان په صفت منل یې ضروري او حتمي دی .

دغه قسم اختلاف ته ځکه حقیقي اختلاف ویل کېږي، چې د دغه دوه ډلو (چې یوه یې پر الله، د آخرت ورځ ، پیغمبرانو، آسماني کتابونو، ملایکو، تقدیر، او له دنیوي ژوند نه وروسته په اخروي ژوند ایمان او باورلري او د هغه په مقتضیاتو عمل کوي او دوهمه ډله بیا د دې ټولونه انکارکوي) ترمنځ داسلام دین سره خطونه ترسیم کړي ،چې هېڅکله نشي کراس کېدی دغه قسم اختلاف اصلا د حق او د باطل ترمنځ د هغه شمولی او دایمي مبارزې او کشمکش نوم دی ،چې د زمکې پرمخ د انسان د پیداکېدو سره سم پیل شوی او ترقیامته به جاري وي اوکله یې هم ترمنځ اتفاق او یووالی ممکن او شونی نه دی البته که کوم ځای کې د یوبل سره د ګوزارې او یو ځای اوسیدو خبره مطرح کېږي هغه به د اسلام د لارښوونو او تعلیماتو په چوکاټ کې تنظیم شوې وي.

د دې دوه ډوله انسانانو او یا دوه ډلو ترمنځ د اختلاف سرو خطونو او لرې واټن ته قرآنکریم داسې اشاره کړې ده:

(لاتجد قوما یؤمنون بالله والیوم الأخریوادون من حادالله ورسوله الایة)

ژباړه : له سره به داسې قوم پیدا نکړې چې له یو طرف نه پر الله او ورځ د آخرت ایمان او باور لري او د بل طرف نه د الله او د هغه له ښمنانو سره دوستي کوي او باور پرې نلري.

بل ځای کې داسې فرمایې:

(یاایهاالذین امنوا لا تتخذوا آباءکم واخوانکم أولیاء ان استحبوا الکفرعلی الایمان... )

ژباړه : ای مومنانو! دخپلو هغو پلرونو او وروڼو سره دوستی مکوئ کومو چې کفر د ایمان په مقابل کې غوره کړی دی.

باید ووایو چې د دې قرآني آیتونو تر ټولو رښتیني او واقعي ممثلین او مصداق صحابه کرام رضی الله عنهم وو چې نه یواځې دا چې د خپلو نژدې خپلوانو سره یې د خپلولی اړیکې پرې کړې وې، بلکې په مختلفو غزواتو کې یې د پلار، ورور .ماما او داسې نور نژدې خپلوان د کفر او شرک پربنیاد د توري له تیغ نه هم تېرکړل.

**۲ : نظري او جزوي اختلاف:**

دغه قسم اختلاف چې زما د ليکنې اصلي موضوع ده ځانګړي طبيعي او غير طبعي اسباب او وجوهات لرى چې په تمامه معنى له منځه وړل يې نه يوازې داچې ناممکن او ناشونى دى بلکې دا کار د انسانى ټولنې د تطور او پرمختګ مخه ډب کوي او د جمود او رکود سره يې مخ کوي ،په الهي کايناتو کې لوى او واړه رنګارنګ اختلافات او تغييرات او د همدي په څېر په پيدايشي لحاظ د انسانانو ترمنځ د رنګ، ژبى، قوم ، سېمې، قد و قامت، عقلي او علمي مستوياتو توپيرونه ددې ښکارندويي کوي چې انسانان به خامخا د نظرياتو په ډګرکې سره متفاوت او مختلف وى، لکه څنګه چې د پورته ذکرشوو تکوينى توپيرونو له منځه وړل په کومه کچه ناشوني دي ،په همدي کچه د نظرياتو اختلاف ختمول هم ناشونى کار دى.

د دغه واقعيت په منلو او دېته په کتو سره اسلامى شريعت يو لړ داسې شرعي ضوابط او آداب وضع کړى تر څو له يو طرف نه د دغه واقعيت سره سم تعامل ترسره شى او له بل طرف نه دغه تکويني او طبيعي اختلاف د اسلامي ټولنې د وګړو ترمنځ د ورورګلوۍ او مينې محبت پرځاى د نفرتونو، جنجالونو، او له يو بل سره د تفرقې او جدايۍ باعث ونه ګرځي.

**داختلاف ضوابط او آداب:**

۱ : د نيت خلوص، ښه ګمان او د هرقسم نفسي خواهشاتونه لرې والى:

د دې اصل او ادب معنى دا ده چې کله يوڅوک په اجتهادي، نظري او جزوي قضاياوو او مسايلو کې له چاسره اختلاف کوي، دا بايد په بد نيتۍ او نفسي غوښتنو ولاړ نه وي اختلاف بايد د تأويل او توجيه وړ نقلي او عقلي دلايلو پر اساس پداسې توګه بنا وي چې مخالف به پر دې قضيه کې خپل ځان حق ته د رسيدو او مقابل لوري د خطاء کېدو د احتمال تر څنګ د خپلي خطاء او د مقابل لوري حق ته د رسيدو په احتمال باور او يقين لري، ددې سره به په خپل مخالف لوري هېڅ قسم داسې اتهام نه پورې کوي چې ګويا د هغه مخالفت په فاسدو او ناروا اغراضو مبتني دى بلکې داسې نيت به کوي، چې زما د مخالف لوري قصد او اراده د خپل مخالفت نه شايد ځان او يا ټولنې ته د خيرجلبول او د اضرارو مخنيوى وي. قرآنکريم ،نبوي احاديث او فقهي قواعد هم په مختلفو اساليبو د ذکرشوي ادب يادونه کړې او په عملي کولو يې ټرکېزکړى دى.

الله متعال فرمايي: (اجتنبوا كثيرا من الظن ان بعض الظن اثم)

ژباړه : له ډېرو بې ځايه ګمانونو څخه ځان وساتئ ځکه ځېنې بې اساسه ګمانونه ګناه ده. رسول اكرم صلى الله عليه وسلم فرمايې:پرمسلمان تر هغه دخير ګمان کوئ ترڅو چې مو ورځنې ښکاره بدي نه وي ليدلي . د همدې پر څير بل حديث کې فرمايې : ترڅو چې د مسلمان عمل او وينا کې تر(۷۰) اوياوو پورى د ښو توجيهاتو احتمال او ځاى موجود وي بايد پرې حمل او توجيه کړاى شي.

په يوه منل شوې فقهي قاعده کې پدې اړه داسې حکم شوى:

(امور المسلمين محمولة على السداد والصلاح ما لم يظهرغيره)

ژباړه : د مسلمانانو کارونه ټول ترهغې سـم او ښه ګڼل کېږي ،چې ترڅو یـې پـه خرابـوالي او عـدم صحت څرګند دلیل موجود شوی نه وي.

**۲ :د اشخاصو ، مذاهبو ، قومونو سره د تعصب نه ځان ساتل:**

د دې عنوان مطلب دا دی چې د چا سره اختلاف په بعینه د هغه د شخصیت، د کوم ځانګړي قوم سره د تړاو، او یا د کـوم ځـانګړي مـذهب د غـوره کولـو پربنیاد نه وي ولاړ بلکـې د دې ټولـو واقعیتونـو لـه منلوسره به اختلاف یواځې د هغه د نظر او کړنو سره وي، ځکه پدې کې ډېرى شیان داسې دي چې انتخاب او عدم انتخاب یې د انسان په وس او توان کې نه دي، په ځانکړې توګه لکه د هغه ظـاهري شخصـیت او د کـومې ځـانګړې کـورنۍ، ټـولنې او قـوم سره تـړاو درلودل نو د دې شیانو پربنیاد له چا سره اختلاف کول د الله جـل جلالــه د تکـویني کـارونو سره تصـادم او ټکرګڼل کېږي.

**۳ : پـه اخـتلاف کـې د عـدل او انصـاف نـه کاراخیستل:**

د اختلاف له آدابـو نـه بـل ادب دا دی چـې پـه اختلاف کې باید د عدل او انصاف نه کار واخستل شي په دې معنی چې څومره د وینا او عمـل پـه ډګرکـې د مخالف لوري د مخالفت کچه وي په همغه اندازه باید اختلاف ورسره ترسره شی نه دا چې د یو چا د وړوکي او جزوي عمل په مقابل کـې د اخـتلاف کچـه هغـې اندازې ته ورسېږي چې د هغه د وینا او عمل د کچـې نه څوچنده زیاته وي

عدل په اسلام کې هغه حکم دی چې د ژوند پـه ټولو برخو کې د مسلمان نه مطلوب دی آن تر دې چې د خپل دښمن سره به د دښمنۍ په وجه هم د عدل نه انحراف نکوي:

الله متعال فرمایي:

(لا یجرمنکم شنأن قوم علی أن لا تعدلوا اعـدلوا هو اقرب للتقوی)

ژباړه : د یو قوم سره دې ستاسو دښـمني د دې باعث نه شي چې له هغوی سره د عدل نه کار وانخلئ له هر چا سره د عدل معامله کوئ ځکه عدل، تقوی او پرهیزګارۍ ته نیژدې عمل دی.

**۴ : د مخـالف د قـول او عمـل تثبـت ،تبین او تحقیق کول:**

محض د یو چا د وینا او عمل څخـه د خبریـدو سره سم به د هغـه سره پـه اخـتلاف لاس نـه پـورې کوئ، ترڅو چې د هغه د وینا اوعمل په برخه کې دې تحقیق او تبین نه وي ترسره کړی ځکه ډېرى خبرونه داسـې خپرېـږي چـې هـېڅ حقیقـت نلـري او تـش افواهات وي.

قرآنکریم یو چا ته د خـبر د رسـیدو او د هغـه سره د تعامل په اړه داسې حکم کوي:

(یا ایهالذین امنوا ان جاکم فاسق بنبأ فتبینوا ان تصیبوا قوما بجهالة فتصبحوا علی مافعلتم ناد مین)

ژباړه : ای مومنانوچې کله تاسو ته د فاسق او غیر اعتمادي کس کوم خبر او راپور ورسیده نو تاسو یې ښه تحقیق او تبین وکړئ ځکه کـه تاسـو دا کـار ونکړئ کېدای شی چې د مطلق خبر پر اوریدو بدون د تحقیق او تبین نه د چا په خـلاف کـوم نـاوړه اقـدام وکړئ او حقیقت به سرچپه ثابت شي نو بیـا بـه پـه خپلو کړو پښیمانه شې او دا پښیماني بیا ګټه نکوي .

په اسلامي شريعت کې پرته له تبين او تحقيق څخه نه يواځې دا چې د چا په خلاف د ناوړه اقدام تصميم نيول منع شوی بلکې مطلق د هرې اوريدل شوې خبرې خپرول هم ناروا ګڼل شوی دی.

نبی کريم صلی الله عليه وسلم په دې اړه فرمايي : (کفی بالمرء کذبا ان يحدث بکل ماسمع )ژباړه : د يو انسان لپاره همدا دروغ بس دي چې بدون د تحقيقه هره اوريدل شوې خبره د نورو په وړاندې بيانوي.

**۵ : د اختلاف نقاط تعينول:**

د اختلاف د نقاطود تعيين او تحديد نه پرته په مطلقه توګه د يو چا سره د الف نه تر يا پ ورې د اختلاف سنګر نيول د اختلاف د ادب نه لرې او غير مشروع عمل دی.

په دې اړه قرآنکريم مونږ ته داسې لارښوونه کړې ده:

( قل يا أهل الكتاب تعالوالی كلمة سواء بيننا وبينكم ان لا نعبد الا الله ولانشرك به شيئا)

ژباړه : ای پيغمبره! اهل کتابو ته ووايه چې راځئ هغه خبره راسره ومنئ چې زمونږ او ستاسو تر منځ مشترکه ده چې هغه يواځې د الله بندګي کول او له هغه سره هيڅ قسم شريک نه نيول دي – دې آيت کريمه کې الله جل جلاله خپل پيغمبر ته لارښوونه کړې چې د اهل کتابو سره خپل د اتفاق او اختلاف نقاط تعيين کړه ورته ووايه چې زمونږ او ستاسو د اتفاق نقطه د الله عبادت اوعدم شرک دی او د اختلاف نقطه د دې خبر نه غاړه تاوول دي څکه بدون د اختلاف د نقطې د تعيين نه د يو چا سره اختلاف کول غير معقول او عبث کار دی چې هيڅ نتيجه پرې نه مرتبيږی.

**٦ :د يو بل سره په ښه توګه خبرې پداسې توګه اړول راړول چې لاندې شيان پکې مراعات کړی شي:**

الف : په الفاظو، کلماتو او عباراتو کې ښه تعبيرکارول

د يو چا سره اختلاف په حقيقت کې د دواړو لورو نه حق ته د رسيدنې هغه جدوجهد دی چې که په ښو او زړه پورې تعبيراتو ترسره شي نو دواړو لورو ته به حق ته په رسيدو او د حق په قبلولو کې لاره پرانيزي او که مناسب تعبير او سمه لهجه و نه کارول شي نوکيدای شي مشروع او جايز نظري او جزوي اختلاف په لويه دښمنۍ او سترو نفرتونو بدل شي.



ب : په خبرو کې آواز ډېر نه اوچتول: په ټيټ آوازاو سړه سينه د خپل مخالف لوري سره خبره کول هغه څه دي چې انسان دېته اماده کوي چې له خپل مخالف جهت سره د اختلاف سره بيا هم مينه او محبت وساتي او که خبره يې حقه ثابته شي نو په آسانۍ سره يې ومني.

**۷ : د حق د اثبات په صورت کې د مخالف لوري نه د حق قبلولو اراده:**

په انساني ټولنه کې چې په جزوي او نظري مسایلو کې اختلاف ته جواز ورکړشوی دی سبب یې دا دی چې هرطرف ته د خپلې وسعې او توان په اندازه خپل کار، وینا او نظر سم او حق ښکاري ددې خبرې طبیعي غوښتنه دا ده چې د اختلاف دواړه لوري به په زړه کې د حق سره مینه او حق ته د رسېدو کلکه اراده او عزم لري که کله چې هم په قطعي نقلي او یا عقلي دلایلو دا ثابته شي چې یو طرف په خپل اجتهاد او انتخاب کې غلط شوی نو د زړه له کومي باید د مقابل لوري خبره تسلیم کړي.

**۸ :د مخالف خبره نه قطع کول:**

پکار ده چې د خپل مخالف لوري خبره په سړه سینه واوریدل شي د هغه د خبرې د ختمیدو نه وروسته بیا خپله خبره شروع کړي د پیغمبر صلی الله علیه وسلم نه مونږ ته د مخالف سره همدا تعامل راپاتې دی لکه چې یوځلې ابوالولید هغه صلی الله علیه وسلم ته د خبرو لپاره راغی نو رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د هغه خبره ښه په غور واوریده او په آخر کې یې ورته وویل : ابوالولیده آیا ستا خبرې خلاصې شوې؟ او بیایې ورته خپله خبره وکړه.

**۹ :د ضرورت پر مهال د فکر کولو لپاره وخت ورکول.**

که مخالف لوری سمدستي ځواب او بحث ته تیار نه وي نو په هغه باید کړی دومره تنګه نشي چې یا ورنه په فوري توګه ځواب وغواړي او یا پرې خپل حقانیت او د هغه ملامتی منل ثابت کړي.

**۱۰ :بې ځایه جدال او مناقشه نه اوږدول**

د مخالف لوري سره بحث او مناقشه تر هغه پکار ده چې تر څو په بحث او مناقشه کې د مثبتې نتیجې د مرتب کېدو هیله موجوده وي چې کله خبره د محض جدال او بې ځایه جر و بحث خواته روانه شوه باید پرېښودل شي.

**۱۱ :خپل او د مخالف اصطلاحات په دقیقه توګه پېژندل او تعریفول:**

دا کارځکه ضرور دی چې کله ناکله داسې کېږي چې په یو شي کې حقیقي اختلاف هېڅ وجود نلري بلکې د دواړو لورو تر منځ پرې اتفاق وي خو البته په ظاهري لحاظ د دوی د مصطلحاتو اختلاف هسې د لفظي نزاع او اختلاف باعث ګرځیدلی وي.

**۱۲ :د مخالف په اړه نه مأیوسه کیدل**

که چېرې د یو طرف حقانیت په منل شوو عقلي او نقلي دلایلو ثابت وي خو بیا یې هم مقابل طرف نه مني نو دی به بالکل د هغه د حق د نه منلو نه خپل امید نه قطع کوي کېدای شي چې یو نه یو وخت د هغه سینه الله د حق منلو ته خلاصه کړي.

**۱۴ :د مخالف سره خپله مینه او ورور ګلوي ساتل:**

د چا سره د نظراختلاف باید اسلامي وررور ګلوي، د هغه سره مینې محبت ته صدمه ونه رسوي، بلکې د دې نظري اختلاف سره سره باید هغه خپل مسلمان ورور وګڼي او د مسلمان په صفت باید ورسره مینه محبت وساتي.







سید سعید

# جنګي جنایتونه ( اکتوبر)

د روان( ۲۰۱٦) کال د اکتوبردمیاشتي په لومړۍ نیټه د لوګر ولایت د څرخولسوالۍ په مربوطاتو کي ځایي عسکرو دهس توګني پر سیمه ډزي کړي،په دې ډزوکي دکور د ښتن په ګډون یوه ښځه او دوې ماشوماني شهیداني شوي دي.

داکتوبر په لومړۍ نیټه د میدان وردګ ولایت د سیدابادولسوالۍ په شش کلاسیمه کي دداخلي عسکرودهاوان په بریدونو کي یوه ماشومه شهیده شوې او یوه میرمن ژوبله شوې ده.

د اکتوبر په ۲مه دلوګر ولایت د څرخ ولسوالۍ په مربوطاتو کي دځایي عسکرو د ثقیله وسلو په ډزوکي څلور تنه ملکي هیوادوال شهیدان شو ي دي.

داکتوبر په ۵مه په ټولنیزو رسنیو کي یوه ویډیو خپره شوه، په ویډیو کي ولسي خلګ په داسي حال کي ښکاري چي زخمیان انتقالوي،دوی وایې چي همدا د کندز ښار باغ شرکت سیمه ده او په همدې سیمه کي دحکومتي چورلکو په ډزوکي شل تنه ملکي هیوادوال شهیدان او ټپیان شوي دي.

د اکتوبر په ۵مه د ننګرهار ولایت د کامې ولسوالۍ په سنګرسرای سیمه کي اشغالګرو دکورنیو عسکرو په ملتیا دخلګو په کورونو چاپې وهلي،دروازې یېپه بمونو الوزولي،شتمنۍ یې لوټ کړي،څلور تنه ولسي- وګړي یې چي ټول سره ورونه وو، شهیدان کړي او ګڼ نور ولسي- وګړ ییې بندیان کړ ي دي.

داکتوبر په ۸مه د غزني ولایت د ګیرو ولسوالۍ د موسی خیلو په کلي کي د د اخلي عسکرو د توپچي په ډزوکي یو ملکي وګړی شهید شوی او پنځه تنه ژوبل شو ي دي.

داکتوبر په ۱۲مه د میدان وردګ ولایت په جلګې ولسوالۍ کي کورنیو عسکرو د ملکي شفاخاني په امبولانس موټر ډزي کړي،په دې ډزوکي یوه ښځه شهیده شوې او دامبولانس دچلونکي په ګډون درې تنه ټپیان شوي دي.

د اکتوبر په ۱۲مه دسرپل ولایت د مرکز اړوند د امام خورد پهسیمه کې اربکیانو دخپل وژل شوي قوماندان په غچ کې یو ملکي وګړی اویو۱۲ کلن ماشوم شهیدان کړ ي دي.

د اکتوبر په ۱٦مه د پکتیاولایت د زرمتولسوالۍ په مموزو سیمه کې اشغالګرو عسکرو چاپه وهلې، د کورونو دروازې یې په بمونو الوزولي،بیا یې تلاشي کړي او په اخر کې یې پنځه تنه ولسي- وګړي د بندیانو په توګه له ځان سره وړي دي.

د اکتوبر په ۱٦مه د کاپیساولایت د نجراب ولسوالۍ په افغانیه سیمه کې داخلي عسکرو د ملکي خلکو د سپرلۍ په یو موټرډزي کړي،موټر چلونکی شهید شوی او درې تنه سپرلۍ زخمیان شوي دي.

د اکتوبر په ۱۷مه د خوست ولایت د موسی خیلو ولسوالۍ په بلي خیلوسیمه کې کورنیو عسکرو د ملکي خلکو په کورونو چاپه وهلې،خلګ یې وهلي،له کورونو څخه یې قیمتي شیان وړي،یو تن ملکي وګړی یې شهید کړی او دوه تنه یې بندیان کړي دي.

داکتوبر په ۱۹مه داسي راپورونه خپاره شول چې دفاریاب ولایت د چهلګزي ولسوالۍ په کنجک او کاریز سیمو کې د جنرال دوستم په مشري ملیشو د بې دفاع خلګو پنځوس کورونه لومړی چو رکړي او بیا یې سوځولي دي.

داکتوبرپه۲۰مه د پکتیا ولایت دځاځي اریوب ولسوالۍپه زوکي کلي کې اربکیانو دملکي خلکو په کورونو دچاپې په مهال اته تنه ولسي- وګړي بندیان کړیدي.

داکتوبر په ۲۰مه دفراه ولایت د بالابلوک ولسوالۍ د کال کلا په سیمه کې داخلیعسکرو دوه تنه عام کلیوال(نبي جان او حبیب) خپلې قرارګاه ته بیولي او هلته یې یو تن شهید کړی اوبل یې شکنجه کړی دی.

د اکتوبر په ۲۰مه دهلمند ولایت مرکز لشکرګاه اړوند د باباجي دتوغي په سیمه کې یرغلګرو د داخلي عسکر په ملاتړ چاپه وهلې،درې تنه ملکي وګړي یې بندیان کړي دي.

د اکتوبر په ۲۱مه د غزني ولایت د خوګیاڼو ولسوالۍ په ولي کلا او سیدانو کلیو باندي د داخلي عسکرو د هاوانونو په بریدنو کې اووه تنه ولسي وګړي د ښځو او ماشومانو په ګډون ژوبل شو ي دي.

داکتوبر په ۲۲مه د ننګرهار ولایت د پچیر اګام ولسوالۍ په پچیر کلي کې د یرغلګرو په ډرون حمله کې ملک مسعود او څلور تنه نور ولسي وګړي شهیدان شوي دي.

د اکتوبر په ۲۴مه دفاریاب ولایت د گرزیوان ولسوالۍ په غلبیان سیمه کې اربکیانویوه کور ته لاسي بمونه ور غورځولي، یوه میرمن پکې شهیده شوې او دوه ماشومان زخمیان شوي دي.

د اکتوبر په ٢٦مه دزابل ولایت د ارغنداب ولسوالۍ په بندکلي کي د داخلي عسکرو دهاوان په ډزو کي دعبدالرحمن اخندزاده په کور کي دوې میرمني شهیداني شوي او درې تنه ټپیان شو ي دي.

د اکتوبر په ۲۷مه یرغلگرو ځواکونو دشپنيو عملیاتو په لړ کي دننگرهار ولایت د شیرزاد ولسوالۍ د مرکېخیلوپه سیمه کي چاپه وهلې،د چاپې پر مهال د یرغلگرو او طالبانو ترمنځ نښته رامنځته شوې، وروسته اشغالگرو پرسیمه بمبار کړی،د ځایي خلگو په



وینا په بمبار کي دیرش تنه ولسي وگړي شهیدان او ټپیان شوي دي.

د اکتوبر په ۲۸مه رسنیو خبر ورکړ چي دغزني د قره باغ ولسوالي امنیه قومندان پاسوال روح الله د سلطان محمود غزنویلیسې د یوولسم او دولسم ټولگیو دوه زده کوونکي( حمیدالله او فدا محمد) شهیدان کړي دي. ځایي خلگو رسنیو ته ویلي چي دواړه زده کونکي لومړی پولیسو تښتولي ،ترشکنجه کولو وروسته یې شهیدان کړي او تر یوه پل لاندي یې غورځولي وو.

داکتوبر په ۳۰مه دفراهولایتد پشترودولسوالۍدمسوپهسیمهکي داخلي عسکرو دچاپې پرمهال لس تنه ولسي هیوادوال چي سپین ږیري هم پکي شامل دي بندیان کړ یدي.

داکتوبر په ۳۰مه دارزگاندمرکزترینکوټ مربوط په درویشانوسیمهکید یرغلگرو په بمبار کي پنځه دیرش تنه ملکي هیوادوال د ماشومانو اوسپین ږیرو په گډون شهیدان شو ي دي،یاده شوې فاجعه داسي مهال رامنځته شوې چي په درویشان کي د قرارگاه ټول عسکر دخپلو تجهیزاتو سره طالبانو ته تسلیم شول،ولسي وگړي چي همدغي قرارگاه ته د عسکرو تر تخلیه کولو وروسته ورغلل، د اشغالگرو الوتکو د قرارگاه په منځ او شاوخوا کي په نښه کړل او دهمدغه غمیزه پیښه شوه.

مأخذونه :[بي بي سي راډیو،ازادي = ،افغان اسلامي اژانس ،پژواک = ،خبریال ویبپاڼه ،لراوبر= ،نن ټکی اسیا=اوبینوا=]

# سلطان عبدالحمید الثاني

## یا د عثماني خلافت ځلانده ستوري !

ق نذیر حکیمی

سلطان عبدالحمید الثانی دعثمانی خلافت هغه ځلانده ستوری وو، چې دژوند تر آخرنۍ سلگۍ پورې يې دصبر ، استقامت ، شجاعت ، شهامت او اتلولۍ داسې سپيڅلي منارونه جوړ کړي ، چې داسلامي تاريخ زرين باب ته يې ښکلا او زينت وربښلی –

اسلامي تاريخ د(سلطان عبد الحميد) په باب داسې يادونه کړې:

کله چې غرب او اروپايانو عثماني خلافت داقتصادي لحاظه کمزوری کړ ، نو ديهوديانو يو وفد سلطان عبد الحميد ته راغی ، سلطان عبد الحميد ته يې وويل ، مونږ ته دفلسطين خاوره وسپاره، ترڅو پرې يهوديان آباد کړو ، مونږ به دفلسطين په بدل کی تاسو ته سره اوسپين زر ، او د عثماني خلافت څخه ټول قرضونه او پورونه پورته کړو !

سلطان عبد الحميد موسکی شو ، يهوديانو فکر وکړ، چې سلطان ته زمونږ خبره په زړه پوری وه ، سلطان له لږ ځنډ وروسته دخپلې ږيرې لاندې لاس راکش کړ ، او ديهودو مشرانو ته يې په دردناکه او هيبتي غږ خطاب وکړ (( زما دی قسم دفلسطين په مبارکه خاوره وي ، که تاسې زما څخه دږيرې دغه يوه ذره خاوره چې دفلسطين په ځمکه گرځيدلي يم وغواړئ ، داروپا او غرب ټول سره او سپين زر ، لعل او جواهر زما په پښو کی انبار کړئ ، هيڅکله به ستاسو دغه آرمان پوره نشي ـــــ يهوديان په ډيره مايوسۍ او شرمناکه توگه دسلطان لخوا څخه پاڅيدل ، او دهغې ورځې څخه وروسته يې په مسلمانانو کې دتعصب کرغيړن مرض خپور کړ ، او په ډيره کمه او لږه موده کې يې هاغه عثماني خلافت چې اته سوه کاله يې خپل برم او شوکت ثابت کړی وو ، د زوال سره مخامخ کړ – او همدا کرکجن او کرغيړن تعصب دعثماني خلافت دټوټه کيدو باعث شو!!!

# شهيدي قافلي

(عاکف مهاجر)

## د بابوس اتل شهید مولوي امــرالله رهبر ژوند لیک ته لنډه کتنه!

پیدایښت او زده کـړې:

شهید محــترم مولــوي امــرالله رهــبر د عبــداللطیف ځــوی د لــوګر ولایــت د مرکــز اړونــد بابوس سیمې اوســیدونکی و، چې په ۱۳۵۷ لمریز کــال کــې یې په یوه دینداره کورنۍ کــې دې فــاني نــړۍ تــه ســترګې غړولې وې.

نومــوړی چــې د درس ویلو جوګه شو ،نو پــه دینــي زده کړو یــې پیــل وکــړ چــې لومړنۍ زده کړې یــې د خپــل کلي له ملا امام څخــه تــرسره کــړې او بیــا د لــوګر ولایــت جامعهٔ ( عمري ) ته ولاړ. هلته د لومړنیو درجــو لــه لوســتلو وروســته د جــلال ابــاد نجــم المــدارس، وروســـته د کابــل مشـــهورې مدرســـې جامعـــه فــاروقیې او همدارنګــه یــې د ګاونډي هیــواد پاکســتان پــه مختلفو مدرسو کې زده کــړې وکړې ،چې بــالاخره د مبــارکو احــــادیثو دورې او دســـــتار فضیلت په موخه د عبدالله ابــن مسعود رضی الله عنه مدرســې ته ولاړ او هلته یې لویه دوره د سیمې له مشهور شیخ الحدیث مولوي عبدالغني صاحب څخه ولوستله، خو له بده مرغه چې د درس په اخري میاشــتو کــې اســیر شــو او د دســـتاربندي د مراسمو شپې او ورځې یې په زندان کې تیرې کړې.

**د طالبانو په تحریک کې ونډه:**

په ۱۳۷۳لمریز کال کې کله چې د طالبانو سپېڅلی تحریک راڅرګند شو نو په لومړنیو کلونو کې شهید ( رهبر ) د کم عمر ښتن و، خو چې کله یې د ځوانۍ بڼ زرغون شو نو رهبر شهید له علمي زده کړو او مصرــوفیتونو سره سره د شر او فساد په خلاف مبارزې کې ونــډه واخیســته چــې د هیــواد پــه مختلفو ولایتونو کې یې خدمت ترسره کړ او تر هغې پورې په دغه مبارزه کې مصروف و چې تحریک د نړیوالو صلیبي اشــغالګرو د اشر پــه نتیجــه کــې ونړېد.

**د امریکایانو په خلاف جهاد:**

کله چې صلیبیانو د خپل کفري نظام او الحاد د پلي کولو په موخه پــه ګران هیواد یرغل راوړ؛ نو نوموړی له خپلو مخلصو ملګرو سره د جهــاد پــه لومړي صف کې په پوره مېړانې سره ودرېد ،ان تردې چې خپــل کــور یــې د مجاهدینو لپاره د مرکز په توګه کاراوه، له همدې امله به یې په کور هر وخت د تالاشۍ او چاپو بهیر روان وو.

نوموړی یو څه موده وروسته د مجاهدینو د سالار او قومندان په توګه راڅرګند شو، رهبر شهید چې د لوړو اخلاقو، نرمې لهجــې، وریــن تنــدي او

نبوي سیرت او صورت څښتن و؛ له همدې امله ملګرو ورسره بې کچې مینه درلـوده، همـدا لامل و چـې ملګـري یـې هـم مخلـــص، زړور او د پــــوره اطاعت درلودونکي وو، چې په لنډه موده کې د خپلـو تونـدو عملیـــاتو پـــه نتیجـــه کـــې امریکایـــانو او اجیرانـــو تـــه مطلوب شو او هـر وخـت بـه ډارن دښمن ورڅخه په وېـره کې و.

د یـــادونې وړ ده چـــې رهــبر شـــهید د دغــه ایثــار او قرباني په سلسله کې د خپـل اسارت په دوران کې خپل ځای ناستی ګران او محــترم ورور دینــي عــالم مولــوي صــاحب کـــریم الله کـــامران چـــې د یرغلګرو په خلاف یې د خپـل اسیر ورور لاره تعقیب او پــه دښــمن یــې تنــدریز عملیــات تــرسره کــول چــې بــالاخره د وحشي امریکایانو لخوا په یوه چاپه کې په شــهادت ورسـېد چـــې لـــه شـــهادت او تـــدفین وروسته یې پــه کرامــت ډـول لوګر شاهد و.

**د شهید رهبر بندي کېدل:**

د لوېې دورې له اختتام څخه شاوخوا یـوه میاشـت وړانـدې د ۱۳۸۷ لمریز کال د حمل د میاشتې په ۱۴ نېټه نوموړی د ثمر خېلو پـه پاټـک جـلال اباد کې د اجیرو غلامانو لخوا ونیول شو، درې کاله یې په زندان کې تېر کړل، ګڼ تکالیف یې وګالل او تر آخره پورې په خپل عزم کلک ولاړ و، چې بالاخره د حوت د میاشتې په ۲۸مه نېټه د ۱۳۹۰ هــ ش کال له زندان څخه آزاد شو.

**شهادت:**

نوموړي له اسارت څخه وروسته خپله دنده پیل کړه او مقدس جهاد ته یې ادامه ورکړه چې مبارزه یې نوره هم ګړندۍ شوه، امریکایانو هڅــه کولــه چې نوموړی اسیر کړي.

په ۲۰۱۴ م کال کې له ډېرو چاپو سره سره څو واره د بې پیلوټه الوتکو د ناترسه بریدونو لاندې راغی خو روغ رمټ به ترېنه ووت او په الهي نصرت سره به وژغورل شو .

خو بالاخره په ۲۰۱۴ م کال د اګست میاشتې په ۲۵مه نېټه د صلیبیانو لخوا د بې پیلوټه الوتکې په یوه ناځوانمردانه برید کې لــه خپـل یـو ملګـري صالح محمـد کاروان سره یو ځای شهید شو.

روح دې ښاد او یاد دې تل وي.

فمنهم من قضی نحبه و منهم من ینتظر. الایة

د شهید امرالله رهبر دردونکی شهادت د دوی د کورنۍ او ملګرو لپـاره یې څه نوې خبره نه وه، بلکې د نوموړي یو مشر ورور ( عبدالحی سیف الله ) د روسانو په خلاف په سپېڅلې جهادي مبارزې کې د شهادت لوړ مقـام تـه رسېدلی، او بل کشر ورور یې مولوي کریم الله کامران چــې پورتــه یــې هــم یادونه شوې د وحشي صلیبي یرغلګرو په وحشیانه چاپــه کــې پــه شــهادت رسېدلی . ان شاءالله په راتلونکي کې به یې د ژوند او کارنـامو ســوانح نشرـ کړو.




ابن جریر وایي له ختیځ څخه نیولې تر لویدیځ پورې دټولې ځمکې واکمنان څلور تنه تیرشوي دي چې دوه یې مؤمنان او دوه کافران و.

هغه دوه تنه چې مؤمنان و یو سلیمان د داوود علیه السلام زوی او بل ذوالقرنین و.

او کافران یو نمرود او بل بختنصر و چې له دغو څلور تنو څخه پرته بل چا په ټوله نړۍ واکمني نه ده کړې.

ستر طاغوت او کبرجن نمرود د الوهیت او خدایي دعوه کړې وه او ویل به یې )زه وژل او ژوندي کول کوم) چاته چې مې خوښه شي وژنم یې او چاته مې چې خوښه شي ژوندی یې ایله کوم.

زید بن اسلم وایي د ځمکې پر مخ اولنی سرکښ نمرود و.

خلکو به دده په مخ کې خوراکونه خوښول او بیا به یې خوړل یوه ورځ ابراهیم علیه السلام هم له خلکو سره ددوی په ډول ورغی چې خوراک خوښ کړي ، خو نمرود به په دې خلکو تېرېده او پوښتنه به یې ځینې کوله چې ستاسو رب څوک دی؟

هغوئ به ورته ویل ته یې. (العیاذ بالله)

کله چې ابراهیم علیه السلام ته راورسېده پوښتنه یې ځینې وکړه ستا رب څوک دی؟

ابراهیم علیه السلام ورته وویل : زما رب او څښتن هغه څوک دی چې ژوندي کول او مړه کول کوي (مرگ او ژوند دده په اختیار کې دی)

نمرود ورغبرگه کړه زه هم مړه کول او ژوندي کول کوم.

ابراهیم علیه السلام ورته وویل : الله تعالی لمر له ختیځ څخه را خېژوي ته یې له لوېدیځ څخه را وخېژوه!!

د الله د نعمتونوناشکره (نمرود ) بې ځوابه شو ، ابراهیم علیه السلام یې له خوراک څخه منع او وگرځاوه.

تیار او ابراهیم علیه السلام ته ورمخکې کړل.

ابراهیم علیه السلام چې کله دا خواړه ولیدل مېرمنې ته یې وویـل : دا دې له کومه کړل؟

مېرمنې یې ورته وویل دا مې له هغو توکو تیار کړل چې تا راوړي و.

ابراهیم علیه السلام وپوهېده ،چې د الله له لوري ورکـړل شـوي روزي ده، نو د الله تعالی شکر یې وکړ.

خو سر کښ نمرود ته الله تعالی یـوه ملایکـه راوسـتوله ،چـې پـه الله تعالی ایمان راوړه او نور دې خپله پاچاهي او واکمني کوه ، نمرود ونـه منلـه او ورته ویې ویل : ایا له ماپرته بل رب (څښتن) هم شته ؟

دوهمه ملایکه او بیا دریمه ملایکه الله ورته راولېږلې خـو نمـرود پـه الله تعالی د ایمان راوړلو خبره ونه منله ، ملایکې ورته وویـل : خپلـې ټـولې ډلې او ځواکونه دې په دریو ورځو کې را یو ځای کـړه نمرود خپلـې ټـولې ډلې او لښکرې سره رایوځای کړې ، الله تعـالی د ماشـو یـوه دروازه پـرې را پرانسته ،دومره ډېر ماشي پرې را توی شول، چې غوښې یې ورڅخه وخوړې ، وینې یې وزبېښلې تش هډوکي پاتې شول او له نمرود نه پرته نور ټول مړه شول اونمرود ته یې هیڅ ونه ویـل، خـو الله تعـالی دې سرکښ کـافر تـه یـو ماشی راواستاوه، چې لومړی یې پر پـوزه او بیـا یـې دمـاغو تـه ننـوت ،تـر (۴۰۰) کلونو پورې دا سرکښ داسې ژوندی و ،چې په څټکونو او څپلیو بـه یې خپل سر واهه، تر څو هغه دده په سر کې دننه ماشی یو څه کرار شي..

پاتې دې نه وي چې نمرود (۴۰۰) کاله پاچاهي او واکمني کـړې وه او (۴۰۰)کاله بیا الله تعالی په دنیا کې په شرمونکي عذاب اخته کړ ، دا د هغه چا جزا وه چې د الوهیت (خدایي) دعوه یې کړې وه، نو الله تعالی په یـوه وړه خزنده داسې عذاب ور کړ.. اعاذناالله من حاله



ابـراهیم علیـه السـلام د کور لوري ته راستون شو، په لار کې یې د شګې یـو ټـوپی ولیـده او لـه ځـان سره یـې وویل : ښه نـه ده چـې لـه دې شـګې څخـه څـه پنډ کـړم او کورتـه ورشـم ،ترڅـو مـې د کورنۍ زړونه خو شـحال شي (ناهیلي نه شی او ووایي چې څه یې راوړل)

شګه یې پر اوږو راوړه کور ته ننوت پـر ځمکـه یـې کېښوده او ویده شو.

مېرمنـــې یـــې پنـــډ پرانیسـت،ګوري چـې د ډېـرو ښو او غورو خوراکونو توکي پکې دي ، له هغو توکو څخـه یې رنګارنـګ ښـکلي خـواړه

ژباړنه: م. حمد الله (دانشمند)

# د ابوذر (الغفاري) رضی الله عنه وفات

نوموتی صحابي"ابوذر الغفاري"- رضی الله عنه- چې په محامي الفقراء(د نادارو غمخوار) سره شهرت لري په "ربذة" سيمه کې د خپلې بي بي او يوې مريۍ سره اوسېده. بي بي يې د بيمارۍ پر مهال سر ته ناسته وه ژړل يې.

نوموړي- رضي الله عنه- ورته کړه: څه دي، ولې ژاړې؟

هغې ورته کړه: ولې به نه ژاړم؛ ته په يوه لرې پرته سيمه کې اوسېږې؛ کور کې دومره ټوکر نشته چې ستا کفن يې کړم؛ په يواځې سر به ستا څنګه پالنه وکړم.

هغه مبارک ورته وويل: کله مې چې د اجل داعی ته لبيک وواېه، ته او مريۍ راته غسل راکړئ، کفن راکړئ، د لارې په څنګ کې مې کېږدئ، لومړی بهير چې په تاسو تېرېږي، ورته ووايئ: دا "ابوذر" دی!

کله چې له دې وراني نړۍ وکوچېد؛ هغوی همداسې وکړل.

"عبد الله بن مسعود"- رضي الله عنه- د يو ټولي په ملتيا- چې له کوفې سره يې تړاو لاره- په همدې لاره تېرېده، په ياده جنازه يې سترګې ولګېدې، پوښتنه يې وکړه؛ دا دچا ده؟!

چا ورته وويل: دا د "ابوذر" جنازه ده!

د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه پر مخ د ترمو اوښکو سيلاب راغی؛ ويې ويل: د الله پاک رسول رښتيا ويل:

((يرحم الله أبا ذر، يمشي وحده، ويموت وحده، ويبعث وحده)).

ژباړه: په ابوذر دې الله رحم وکړي؛ يواځې ځي، يواځې به مري او يواځې به را پاڅي. نوموړي مبارک يې جنازه وکړه او په خپله يې دفن کړ. سنه [۳۱/ ۳۲هـ].

"طبقات ابن سعد"

# چرا این همه مردم
# با هم اینگونه اختلافات می ورزند؟

ترجمه: اسحاق دبیری

در زمانها و مکانهای مختلف در میان مردم اختلاف وجود داشته است. اختلاف روش و سنت الهی در میان مردم است. آنان از نظر رنگ، زبان، سرشت، فهم، معارف و عقلهایشان با یکدیگر متفاوتند.

همۀ این امور یکی از نشانه‌های خداوند است که قرآن کریم به آن اشاره کرده است: وَمِنْ آيَاتِهِ خَلْقُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافُ أَلْسِنَتِكُمْ وَأَلْوَانِكُمْ إِنَّ فِي ذَلِكَ لَآيَاتٍ لِّلْعَالِمِينَ [الروم: ۲۲» .[از جمله نشانه‌های [دال بر قدرت و عظمت] پروردگار، آفرینش آسمانها و مختلف بودن زبانها و رنگهای شماست. بی‌تردید در این ]آفرینش ستارگان فراوان جهان که با نظم و نظام شگفت‌آور گردانند، در این گوناگونی آفرینش] برای فرزانگان و دانشوران نشانه‌هایی وجود دارد.«

این اختلاف در ظاهر، دلیل بر وجود اختلاف در آرا، دیدگاه و افکار است. قرآن کریم در چند آیه به این امر اشاره دارد.

برای نمونه آیه زیر: چرا این همه مردم با هم اینگونه اختلافات می ورزند؟_ وَلَوْ شَاءَ رَبُّكَ لَجَعَلَ النَّاسَ أُمَّةً وَاحِدَةً وَلَا يَزَالُونَ مُخْتَلِفِينَ إِلَّا مَن رَّحِمَ رَبُّكَ وَلِذَٰلِكَ خَلَقَهُمْ وَتَمَّتْ كَلِمَةُ رَبِّكَ لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ ]هود: ۱۱۸-۱۱۹.[

]»ای پیغمبری که بر ایمان آوردن قوم خود آزمند و بر روی گردانی آنها از دعوت آسمانی متأسف هستی! بدان که] اگر پروردگارت می‌خواست مردم را [همچون فرشتگان در یک مسیر و بر یک برنامه قرار می‌داد و] ملت واحدی می‌کرد.

]و پیرو آیین یگانه‌ای می‌نمود و آنان در مادیات و معنویات و در انتخاب راه حق یا راه باطل اختیار و اخلاقی نمی‌داشتند.

آن وقت جهان به گونه دیگری در می‌آمد] ولی [خداوند مردمان را مختار و با اراده آفریده و] آنان همیشه »در همه چیز، حتی در گزینش دین و اصول عقائد آن» متفاوت خواهند بود.

]مردمان براساس اختلاف استعدادشان در همه چیز حتی در دینی که خدا برای آنان فرستاده است، متفاوت می‌مانند] مگر کسانی که خدا بدیشان رحم کرده باشد [و در پرتو لطف او بر احکام قطعی الدلاله کتاب خدا متفق بوده هر چند در فهم معنی ظنی الدلاله آن که منوط به اجتهاد است. اختلاف داشته باشند[.

و خداوند برای همین [اختلاف و تحقق اراده و رحمت] ایشان را آفریده است.«

فخر رازی می‌گوید: «مقصود این آیه اختلاف مردم در دین، اخلاق و افعال است.«

این آیه بیان می‌کند که اگر خداوند می‌خواست [می‌توانست] بندگان را براساس غریزه و فطرت دارای دین واحدی قرار بدهد، به گونه‌ای که [در انتخاب آن] هیچ رأی و اختیاری نداشته باشند .... بنابراین، این مخلوق بشر نامیده نمی‌شدند بلکه در رفتار اجتماعی مانند زنبور عسل یا مورچه می‌بودند و روحشان همانند فرشتگان می‌بود و براساس فطرت به حق و اطاعت معتقد می‌بودند.

در آنچه خداوند بدانها امر می‌کرد، نافرمانی نمی‌کردند و آنچه را که بدان دستور داد. می‌شدند، انجام می‌دادند.

هیچ اختلاف و نزاعی میان آنها به وجود نمی‌آمد. اما خداوند براساس حکمت خود آنها را به گونه‌ای خلق کرده است که علم را کسب کنند، نه اینکه به آنها الهام شود.

همچنین براساس اختیار عمل نمایند و بعضی از امور ممکن مغایر با گروه دیگر را ترجیح دهند، نه اینکه مجبور و بی‌اختیار باشند. همچنین آنها را از نظر استعداد، کسب علم و میزان اختیار متفاوت قرار داده است.

لازم است بدانید که در آیه »ولذلك خلقهم« لام برای غایت و هدف نیست. یعنی قصد آن نیست که خداوند - سبحانه - آنها را آفریده است تا اختلاف داشته باشند. زیرا چنانچه بر همگان واضح است خداوند آنها را برای عبادت و اطاعت از خودش آفریده است. در اینجا لام برای عاقبت و انجام شدن است.

یعنی برای نتیجه اختلاف آنها را خلق کرده است که عبادت از تبدیل شدن آنان به دو گروه است: گروهی در بهشت، و گروه دیگر در آتش سوزان جهنم.

گاهی این لام را لام تعلیل می‌دانند. یعنی آنها را آفریده است تا هر کدام از آنها برای کار و عملی آماده شود، و براساس سرشت خود از میان اموری که جهان به وسیلهٔ آن اداره و هموار می‌شود و امور زندگی به وسیلهٔ آن سامان می‌یابد، کار و پیشه‌ای انتخاب کنند. پس مردم محمل‌هایی برای امر خداوند هستند و بعضی از آنان گروه دیگر را مسخره می‌کنند.

خداوند آنها را در علوم، معارف، اندیشه، احساسات و همه اعمالی که از اختیارشان در اعمال ناشی می‌شود، از جمله ایمان، اطاعت و معصیت دارای قابلیت اختلاف و تفرقه آفریده است.( )

از کتاب: "اصول و آداب گفتگو در اسلام"
تألیف: صالح بن حُمَیْد

# د عبرتونو پر لـور،

## د مظلوم ښېرا وهلی !!

دکتور محمد عبدالرحمن العریفی
ژباړن: عبدالباري جمال

زما یو ملګری دی، چې ډېر نیك او متقـي دی او هغه ته څه خلك د دم لپاره هم راځي. هغه راتـه یوه ورځ وویل:

یوه ورځ یو غټ او مشهور تاجر راغی او راتـه یې وویل چې: په چپ لاس بانـدې مـې سـخت درد دی، زه هېڅ نه پوهېږم چې څه سبب یـې دی ډېـرو ډاکټرانـو او روغتونونـو تـه لاړم ، د معـاینو ټـولې نتیجې پاکې دي هېڅ نه پوهېږم چې ولـې؟ کېـدای شي چې د نظره شوی یم او اوس دا دی تاته راغلم ،چې دم مې کړې.

ما هغه دم کړ او دعا مې ورته وکړه.

هغه په دویمه ورځ راغی مادم کړ، په دریمه او په څلورمه هم راغی، تردې چې د هغه راتګ ډېـر شو، ورځ په ورځ به د هغه د لاس درد ډېرېـده. آخـر ما ورته وویل:

کېدای شي ستا دا درد د کوم مظلوم د ښـېرا له امله وي، چې تا ورسره ظلم کړی وي. د غصې نه د هغه رنګ بدل شو راته یې وویل:

آیا زه ظالم یم، زه ظالم یم. تـه مـا د خپـل ځانه ښه نه پېژنې. زه غلی شوم او د هغه نـه مـې بښنه وغوښته. هغه لاړ.

هماغه تجار لس ورځې وروسته په داسې حال کې راغی ،چې روغ او جوړ و. هغه کوښښ وکړ، چې زما سر چپ کړي، بیا یې راته وویل:

ته زما د شفاء سـبب یـې. ماترینـه پوښـتنه وکړه هغه څنګه؟

هغه وویل: په هغه ورځ چې زه ستا د کور نه ووتلم زما د لاس درد په ډېرېدو شو، خو ستا خـبرې زما په غوږونو کې انګـازې کـولې. هـو! سـتا خـبره رښتیا وه، ما په یوه کس ظلم کړی و. زما پـه یـاد شول، کله چې ما خپل قصر جوړاوه، زمـا د ځمکـې سره څنګ کې دهغه ځمکـه وه، مـا غوښـتل چـې هغه واخلم، خو هغه ځمکه دیوې کونډې ملکیـت و، ما هغوئ ته څواب ورولېږه ،چې دا ځمکه په ما خرڅه کړه. هغې کونډې وویـل: چـې ځمکـه خرڅـه کړم، بیا به په پیسو څه وکړم،هغې ویل: دا ځمکه زه خپلو بچیو ته پرېږدم، کله چـې هغـوئ څوانـان شول، بیا یې خوښه ده چې څه پرې کوي.

ما ډېر کوښښ وکړ، چې هغه قانع کړم، خو هغې انکار وکړ، حال دا چې دې ځمکې ماته ډېر اهمیت درلود.

زما ملګری وایي ، ما د هغه تجار نه پوښتنه وکړه: بیا دې څه وکړل؟.

تجار راته وویل: ما خپلې خاصې طریقې استعمال کړې. ما د خپل حیثیت نه ګټه واخیستله او لوی لوی خلك مې په دې وګمارل. ما ورته وویل: د هغې کونډې او یتیمانو څه وشول؟

هغه راته وویل: چې هغوئ خبر شول، هغوئ به ځمکې ته راغلل، چې مزدوران به یې ولیدل، نو هغوئ ته به یې سپکې سپورې کولې او ژړل به یې. مزدورانو دا سوچ کاوه، چې هغوئ لیوني دي. زما په یاد شي، چې هغې به خپل لاسونه دعا ته پورته کړل او په داسې حال کې به یې ښېرا کولې، چې اوښکې به یې له سترګو روانې وې او بیا دغسې زما په لاس درد ولګېده ،چې نه مې د شپې خوب و او نه مې د ورځې ارام درلود.

ما ورته وویل: بیا دې څه وکړل؟

هغه راته وویل: زه هغې ته ورغلم او ښښنه مې ترینه وغوښتله، تردې چې زه ورته په ژړا شوم او د هغې په بدل کې مې ورته په بل ځای د هغې ځمکې نه ښه ځمکه ورکړه.

کله چې د هغې ښځې د معاملې نه وزګار شوم ،الله جل جلاله ته مې رجوع وکړه، تردې چې د لاس درد مې کرار په کرار آرام شو او اوس دادی الحمدلله. بیخي ښه دی.

د دې کیسې د لیکلو نه هیڅ وخت زما دا مطلب نه دی، چې مرضونه د ګناهونو له امله وي. انبیاء او صالحین خو هم ناجوړه شوي دي. د دې قیصې نه زما غرض دادی، چې د مرض له امله الله جل جلاله د بنده کبر، غرور او فخر ماتوي، کله چې یو کس چې هغه هر وخت ارام، خوشحاله او آسوده وي، نو په اخر کې بیا هغه سرکشه شي او خپل اولنی وخت او انجام هیر کړی.

الله جل جلاله هغوی د دې لپاره ناروغه کوي او غمونه پرې راولي ترڅو په دې پوه شي چې هغه هیڅ هم نه دی.

کله ناکله داسې هم کېږي، چې انسان دیوځه په پوهېدلو کوښښ کوي، خو هغه پرې نه پوهېږي او کله ناکله غواړي چې یو څه رایاد کړي، خو هغه ترې هیر وي.

کله داسې هم کېږي، چې انسان داسې څه غواړي چې په هغه کې یې هلاکت وي اود داسې شیانو څخه نفرت لري، چې په هغه کې یې ژوند وي.
که الله جل جلاله وغواړي چې د انسان سترګې، ژبه، پښې، لاسونه او غوږونه واخلي او یا یې لیونی کړي او یا یې په کوځنډ ووهي، نو هغه (انسان ) به څه وکړي او څه کولی شي ؟.

❊ ❊ ❊







د ژوند له کلي د خوښيو کيږدۍ وکوچېده
خولې نه مي ځکه بې اختياره سلګۍ وکوچېده

د زړه پر کور مي تور څادر غمونو خور کړ هلته
چې د سرور افق نه لاړه سپوږمۍ وکوچېده

بندي مرغه رنګه عبث ګرځم د ژوند قفس کې
نور مې د بخت له سمندره بېړۍ وکوچېده

د خوشحالۍ لمر مي د بل جهان له غره شو پنا
ورسره سمه مي د زړه دنياګۍ وکوچېده

زه هم بادشاه وم چې پر سر مې د همَای سيورۍ وو
لاړه له سره مې سايه د شاهۍ وکوچېده

هغه چې زما د هيلو بڼ يې په دعا اوباوه
نن مي هغه ستره هستي له نړۍ وکوچېده

اوس نو يتيم شومه نظام غم سره لاس او ګرېوان
شول اَبَدي رانه رخصت مُورَکۍ وکوچېده

# سپين کوچي




چې شپه به شوه، يواځې به په لاره چيرته نه تلم
چې ورځ به شوه، د خپل سيوري له ډاره چيرته نه تلم

چې شپه به شوه، د زړه د پرهرو څريکو به وينښ کړم
چې ورځ به شوه، د چا له انتظاره چيرته نه تلم

د ورځې به مې لمر ته خورول د زړه زخمونه
د شپې به د رڼو ستورو له شماره چيرته نه تلم

سهار به مې اوږې تر جنازو لاندې کړې شوې
ماښام به د چورلکو له بمباره چيرته نه تلم

نور غلې د نړۍ له شوره لرې چيرته ورک وی
څه وخت و، د مستۍ او شور له ښاره چيرته نه تلم

اوس اخلم هر قدم د زړه په زور لکه رنځور
ماشوم چې وم، په منډه وم، کراره چيرته نه تلم

شړي مې اوس، دا سرې غرمې، د خپل قامت له سيوري
يو وخت به دې له شنه سيوري، چيناره چيرته نه تلم

خواره، خواره همزولي رب راکړي وه، څه وخت و!!
يواځې به کوچيه سپينه ياره چيرته نه تلم

# د جهاد غږ

## مفتون

توره په لاس پښه په رکاب کې غواړو
تسل د زړونو په محراب کې غواړو

هغه مست جام د شهادت د زمزم
په مسته تنده د شباب کې غواړو

منزل په څوکو د اغزیو کوو
دمه په غیږه د ګلاب کې غواړو

مونږه په ژوند کې انقلاب نه غواړو
مونږ ټول ژوندون په انقلاب کې غواړو

مونږه له ممبره داسې غږ کړی دی
جهان سر ټیټی په محراب کې غواړو

جهاد، جهاد او الجهاد ( مفتونه)
د ژوندانه په هر یو باب کې غواړو



## بت شکن

نن چې په سره اورکې ورتیرې داوطن دی زما
توري لوخړې ترې جګیړې داچمن دی زما

داکوه قاف دښاپیرو!دادوریښمولاره
نرۍ پرې توله بلوسیرې داګلشن دی زما

هاغه (ناهید)هاغه (ملاله) دتاریخ شاهکارې
هرځای میوندهریو غړی یي (بت شکن )دی زما

دوخت چنګیزاوهلاکودوخت پیرنګ راغلی
ولس مورچل ورته نیولی ولس ژمن دی زما

دادنګ دنګ غرونه دنګې غاړې دتاریخ میړونه
غاصب لښکر له ګریبا ن نیسې دادښمن دی زما

سربې ،غرغښت اوبیټ نیکه لاس په دعا دې تاته
امیرکروړچې نخښه کړی میرخمن دی زما....

# د قرآن کریم روغتیایي اعجاز!!

## د ژر سپین ږیرتوب دمخنیوي او طرړات لارې چارې

ژباړه: مولوي محمد امان رسولي

د الله تعالی دکتاب ډېر ښایسته اعجاز چې موږ اوریدلی هغه د ازهر د طبي نباتاتو او دوا استاذ او پخوانی رئیس دکتور طه ابراهیم خلیفه بیان کړی دی، دی وایي: دانسان ماغزه یوه ماده د »میثالویثونیدر«په نامه مواد افرازوي او دا داسې ماده ده چې د انسان او حیوان ماغزه یې په کمه اندازه افرازوي،یوه کبریت لرونکې پروتیني ماده؛ ځکه دا په ډېره آسانۍ سره د جست، اوسپنې، فاسفور سره یوځای کیدای شي، او د انسان د جسم د نشاط او فعالیت لپاره ډېره مهمه ده (کولسترول کموي غذایی تمثیل کوي، زړه پیاوړی کوي او تنفس منظموي .(

د انسان له ماغزو د دغې مادي افراز په تدریجي ډول له ۱۵کلنۍ نه تر ۳۵ کلنۍ پورې زیاتیږي؛ بیا یې تر شپیته کلنۍ پورې افراز کمیږي،نو دا آسانه نه ده چې انسان ته په لاس ورشي او په حیوان کې په ډېره کمه اندازه شتون لري؛ نو ځکه د خلکو توجه نباتاتو ته واوښته او د جاپان یو ډله علماو د دې سحري مادې په اړه پلټنه پیل کړه چې د زر بوډوالي د اعراضو په لیري کولو زیات اغیز لري نو دغه ماده یې له دوو نباتاتو (انځرو او زیتونو) پرته په نورو کې ونه موندە. او الله تعالی رښتیا ویلي دي: (والتین و الزیتون ) [التین:۱](قسم دی په تین(انځر) او زیتون باندې)د الله تعالی په قسم کې فکر وکړه چې په تین او زیتون یې یاد کړ او بیا یې دغه قسم د انسان په خلقت پورې تړلی دی چې په احسن تقویم او بیا اسفل سافلین ستایل شوی دی.

تر دې وروسته چې په تین او زیتون کې دغه ماده پیدا شوه دایې وموندله چې دا ماده یواځې له تین او زیتون پرته د انسان صحت ته پوره ګټه نه رسوي، مګر هغه مهال چې له دواړو څخه په ګډه راوکښل شي، بیا د جاپاني علماو یوې ډلې په دې کار وکړی چې څو فیصده د کوم نبات اغیز ډېر دی تر څو ښه اغیز ولري نو پایله یې (۱)یو انځر او(۷ (اووه زیتون دي.

دکتور طه ابراهیم خلیفه په قرآن کې پلټنه وکړه؛ نو ورته جوته شوه چې «تین» یو ځل یاد شوی او د «زیتون «شپږ ځلې په صراحت او یو ځل ضمنا راغلی دی الله تعالی فرمایي: (وشجرة تخرج من طور سیناء تنبت بالدهن وصبغ للآکلین)[المؤمنون:۲۰.[

دکتور طه دغه ګرد معلومات چې ده له قرآن کریم نه راغونډ کړي ؤ جاپاني تحقیقي ګروپ ته واستول، وروسته لدې چې دوی کومې پایلې ته رسیدلي و، قرآن کریم څوارلس پیړۍ وړاندې دې نتیجې ته رسیدلی ؤ، د دغه څیړنیز ګروپ مشر۔ د قرآن د داډول اعجاز په اوریدو خپل اسلام اعلان کړ، او د خپل ګروپ دغه کشف او اختراع یې د دکتور طه ابراهیم خلیفه په نامه کړه.

الله اکبر و لله الحمد.

سرچینه: المجتمع مجله



په اروزګان کې د مجاهدینو لخوا نیول شوې قرارګاه

ISLAMIC, JIHADY , EDUCATIONAL
AND CULTURAL MONTHLY JOURNAL

# Morchal

هلمندکې د مجاهدینو لخوا غنیمت شوي رینجر

